

# د خالق او مخلوق

ترمنځ دواسطی پیژندل

د «الواسطة بين الحق والخلق»

پیشتو ترجمه




Kingdom of Saudi Arabia

The Cooperative Office For Call And Guidan

To Communities at Um Al-Hammam

Under the Supervision of the ministry of Islamic Affa

Endowment Guidance & Propagation



Tel. 4826466 / 4884496 Fax 4827489 - P.O. Box 31021 Riyadh 1



Pustu

28

قُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ وَسَلَامٌ عَلَىٰ عِبَادِهِ الَّذِينَ اصْطَفَىٰ ۗ آللَّهُ خَيْرٌ أَمَّا يُشْرِكُونَ

«سورة النمل:۵۹»

# دخالق او مخلوق

## ترمنځ دواسطې پيژندل

د «الواسطة بين الحق والخلق»

پښتو ترجمــــه




مؤلف: شيخ الإسلام ابن تيمية «رحمه الله»

«۶۶۱ - ۷۲۸هـ ق»

ژباړن: قاضي محمد شعيب «صافى»

ح المكتب التعاوني للدعوة والإرشاد بحائل ، ١٤١٨هـ

فهرسة مكتبة الملك فهد الوطنية أثناء النشر

ابن باز ، عبد العزيز بن عبدالله

الواسطة بين الخالق والمخلوق .ـ حائل .

٩٦ ص ؛ ١٢ × ١٧ سم

ردمك : ٢ - ٤ - ٩١٨٧ - ٩٩٦٠

(النص بلغة البشتو)

١- العقيدة الاسلامية ٢- الايمان (الاسلام) أ- العنوان

ديوي ٢٤٠ ١٨ / ١٨٦٥



رقم الايداع ١٨٦٥ / ١٨

ردمك : ٢ - ٤ - ٩١٨٧ - ٩٩٦٠

دکتاب نوم : دخالق اومخلوق ترمنځ د واسطى پيژندل

مؤلف : شيخ الاسلام احمد بن عبد الحليم بن عبد السلام ابن تيميه رح ٦٦١- ٧٢٨ هـ ق

ژباړن : قاضى محمد شعيب (صافى)

ناشر : مکتبة الامام محمد بن اسماعيل البخاري جهانګيرآباد نمبر ٣ شيخ وله پشاور پاکستان .

دچاپ نيټه ٤/٣ جمادى الثانى ١٤١٥هـ ق

دچاپ شمير (١٠٠٠) ټوکه

# فهرست

د موضوع سرلیک (عنوان) مخ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# دَ ژباړن سریزه

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم، امابعد:

دا ښکاره او یقیني خبره ده چې دا انسان د خلقت او پیدایښت څخه اصلي مقصد هم دا دی چې دی به د الله تعالیٰ عبادت او بندګي کوي، او د سورة ذاریات دغه مبارک ایت (وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ)، د دې مدعیٰ دثبوت یو څرګند دلیل دی، ځکه په دغه مبارک آیت کښې الله تعالیٰ فرمایلي دي: او نه دی پیدا کړي ما پیریان او انسانان مګر د دې لپاره مې پیدا کړي دي چې ځما عبادت وکړي. او انسان هله د کمال مرتبې ته رسیږي چې د الله تعالیٰ په عبادت او بندګۍ کښې د الله پاک د حکمونو مطابق په سیې او حقیقي معنیٰ سره عبد جوړ شي.

همدارنګه په دې کښې هم شک نشته چې انسان یو معزز او مکرم مخلوق دی. او لکه چې الله پاک فرمایي: (وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيْٓ اٰدَمَ وَحَمَلْنٰهُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ.... الایه (۱)

(۱) اسراء: (۷۰)

په ځمکه کښې د نورو مخلوقاتو په نسبت سره په جسمي او معنوي لحاظ د لوړو صفتونو لرونکی او د زیاتو ځانګړتیاوو څښتن دی، چې په دغو ټولو ځانګړتیاوو او صفتونو کښې یې بیا عقل د پام وړ امتیازي صفت دی چې الله (ج) په ده باندې د هغې پیرزوینه کړې ده.

اما بیا هم انسان د عقل او نورو خصوصیاتو په لرلو سره نشي کولای چې د الله پاک د بندګی او عبادت اقسام، او همدارنګه د عبادت کولو کیفیت او طریقه وپیژني او بیا په هاغه طریقه باندې د خپل خالق په وړاندې په عبادت کولو باندې مشغول شي، او عبادت یې د الله تعالی د رضا حاصلولو سبب وګرځي، او بالاخره بیا هغو جنتونو ته د ننوتلو جوګه شي د کوم وعده چې الله پاک د نیکانو او مطیعو بندګانو سره کړې ده.

پس د همدغه ضرورت له مخې الله پاک انبیاء علیهم السلام را ولیږل، ترڅو د وحی په رڼا کښې انسانانو ته لار ښوونه وکړي او همداوی په دنیا کښې د هدایت حاصلولو په برخه کښې د یواځینۍ

---

= او یقینا عزت ورکړی دی مونږ
اولاد د آدم (ع) ته او سواره کړي دي مونږ دوی لره په وچه او د ریاب کښې.

مرجع په توګه سره و پیژندل شی.

د اسلامی امت ستر لارښود محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم په ټولو انبیاؤ کښی اخرنی او غوره پیغمبر دی او کوم کتاب چی په دګه باندی نازل شوی دی هغه د ټولو اسمانی کتابونو په نسبت جامع او اکمل دی، او شریعت یی کامل او مکمل دی.

پس په دغه کامل او مکمل شریعت کښی خلقو ته د دی موقع نه ده ورکړل شوی چی د وی په شرعی امورو کښی د شرعی اصل څخه پرته، د عقل او فاسد قیاس څخه کار واخلی. ولی متاسفانه بیا هم بیوزیات شمیر خلق د وسیلی متعلق په دی عقیده دی چی الله پاک ته د ذواتو فاضلهٔ واسطه کول یو ضروری او لازمی امر دی! دوئ په دی برخه کښی د خپل ناقص عقل او فاسد قیاس څخه کار اخلی او وایی:

دلته په دنیا کښی د حکومتونو تعامل او طرز العمل داسی دی چی کله والیانو، وزیرانو او نورو دولتی مشرانو ته غوښتنلیکونه یعنی عرائض د واسطو د سفارش نه پرته د عارضینو له خوا نیغ په نیغه ورانندی شی، نو بیا کله داسی دی چی هغه هیڅ د مسؤل مقام د پام لاندی راځی نه، او کله

داسې دي چې د عارض په گټه په کښې کوم مثبت او اغېز من اجراءات صورت نه نیسي، د غه راز دوئ وايي: کله چې څوك واسطه د نه لري نو صدر اعظم، رئیس جمهور او پاچا ته یې په یواځې ځان ورتلل که ناشوني نه وي نو د زیاتو مشکلاتو څخه خالي هم نه وي.

همدارنګه دوي وايي: کله چې یو سړی صدر اعظم، رئیس جمهور او یا پاچا ته دوالیانو او یا وزیرانو په واسطه سره خپله عریضه او غوښتنلیك ور وړاندې کړي نو ذکر شوي دولتي مسؤلین بیاد خپلو والیانو او وزیرانو په خاطر سره د دغه سړي عریضې او غوښتنلیك ته نسبةً زیات اهمیت ورکوي.

دوئ د خپلو د غو جوړ ساخته مقدمو په تعقیب وايي: عوام الناس یعنې عادي خلق په دې خاطر چې گناه کاران دي نو د حاجتونو د پوره کولو او د خپلو ستونزو او مشکلاتو د رفع کولو په برخه کښې ورله په کار دي چې ذوات فاضله، یعنې اولیایې کرام او نیکان بندگان واسطه کاندي چې د الله پاك د ربارته یې غوښتنې وړاندې کړي.

دوئ بیا د همدغه اتکل او مزخرف اعتقاد پر بنیاد

د اولیایي کرامو او نیکانو بندګانو قبرونو او مزارونو ته ورددومي او دغیرمشروع اعمالو او اقوالو مرتکب کرځي.

د «الواسطة بین الحق والخلق» په نوم رساله چې پښتو ژباړه (ترجمه) یې ستاسي په وړاندې قرار لري، داسلامي دعوت د یو محکښ، مبارز او مجاهد شخصیت شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله لخوا د دغه ډول واسطې نیولو د څرنګوالي یعنی مشروعیت او عدم مشروعیت په برخه کښې د قرآن کریم او نبوي احادیثو په رڼا کښې په ډېره مدلله توګه سره لیکل شوې ده، او د دغه مسئلې د وضاحت او روښانه کولو په لړ کښې یوه ډېره قیمتي او ارزښت ناکه رساله ده، او لکه چې محمود مهمد وایي: دډې وړده چې په طلا ؤ سره ولیکلی شي او په اسلامي ټولنه کښې د عمل او عقیدې د اصلاح په باب د استفادې وړ وګرځي، که لوستونکي د مطالعې په مهال جنبله کینه او تعصب شا ته وغورځوي نو حتما به ورته دا خبره مبالغه نه بلکښي حق او حقیقت ثابت او معلوم شي.

ګرانو لوستونکو! مخکښي لدې چې د نوموړې رسالې په ژباړه باندې پیل کوم لازمه ګڼم چې لومړۍ

درانه دکتاب مؤلف شیخ الاسلام ابن تیمیه رح په لنډ ډول سره درو پیژنم او بیا مو د یو څه وخت لپاره د څیړونکي په سریزه (مقدمه) کښې چې په خپل ذات کښې یوه ارزښتناکه او ګټوره لیکنه ده مشغول وساتم، او دا په دې خاطر چې په آینده کې په مینه او رغبت سره خپلې مطالعې ته د کتاب تر پایه پورې ادامه ورکړئ .

په پای کښې ستاسو توجه دې ټکي ته اړوم چې د څیړونکي سریزه له دې امله چې اوږده وه نو جلاشمېره ورته ورنه کړل شوه او د شیخ د خپلې لیکنې سره یې تسلسل په نظر کښې ونیول شو چې په دې ترتیب سره تر (۱۷) مخه پورې سریزه ده او بیا د (۱۸) مخ څخه زمونږ د ترجمې منتخب کتاب شروع کیږي .

پس دا دې زه د وعدې مطابق په لومړي مقصد پیل کوم او د الله تعالی څخه سوال کوم چې مونږ ټولو مسلمانانو ته په صراط مستقیم باندې چې د منعوم علیهم غیر المغضوب علیهم ولا الضالین لاره ده تللو توفیق راکړي .

وصلی الله تعالی علی محمد و آله وصحبه اجمعین

قاضي محمد شعیب . کنړ افغانستان .

۱۴۱۵/۳/۸ هـ ق.

# دَمُصنف لَنډه پیژندنه

د ده نوم شیخ الاسلام تقی الدین ابو العباس احمد ابن عبد الحلیم بن عبد السلام بن عبد الله بن الخضر بن محمد بن تیمیة الحرانی الدمشقی دی.

تیمیة د ده نیابی بی نوم وُچی اصلا د ده د جد اعلیٰ (محمد) مور وه او په خپله زمانه کښې یوه داسی عالمه، واعظه او تقویٰ داره ښځه وه، چی په خپل قابیل او سیمه کښې یې په علم، پوهه، ذکاوت او تقوی کښې ساری نه درلوده او بیا دهغې د اولاد په سلسله کښې تیمیه دهغه چاليپاره تخلص وګرځید لوچی دهغې سره یې په علم او ذکاوت کښې مشابهت او ورته والی درلوده.

شیخ الاسلام ابن تیمیه رح په ۶۶۱ ه ق کال کښې د ربیع الاول د میاشتی په لسمه[1] د حران په ښار کښې زیږیدلی دی، او کله چی تاتاری یرغلګرو قوځونو په ۶۶۷ ه ق کال کښې په حران باندی یرغل وکړ نو شیخ د شپږ[2] د کلونو په عمر ؤ چی والد صاحب یې ډی او د کورنۍ نورو غړی د ځان سره واخستل، او دمشق ته مهاجر شول؛ ده په دمشق کښې خپلې زده کړې ته چی په حران کښې یې پیل کړی وه ادامه ورکړه، او

په لنډه موده کښې یې خپل تحصیلات پای ته ورسول.

څرنګه چې نوموړی د لوړ استعداد، قوي حافظې او اعلی ذکاوت څښتن ؤ، نو له دې کبله د خپل تحصیل په دوران کښې د هر فن په زده کړه کښې د ټولو همدرسو اندیوالانو، او ملګرو په نسبت سره ممتاز حیثیت او مقام درلوده، ده به خپل درس په داسې توګه حافظې ته سپارلو چې کله به ترینه کوم ملګري او یا استاذ پوښتنه وکړه نو ده به ورته خپل ټول درس په داسې ترتیب سره تیر که لکه څنګه چې به یې استاذ د درس ورکړی، همدا وجه وه چې ټولو استاذانو به یې ستاینه او صفت کاوه او ملګرو به یې د ده د خدائ ورکړي استعداد په برخه کښې حسد مشروعه یعنې غبطه درلوده.

شیخ الاسلام ابن تیمیه رح د هغو ریښتنو او واقعي علماؤ او مجاهدینو له جملې څخه دی چې د دعوت الی الحق په میدان کښې یې په ژبه، قلم او توره سره د جهاد وظیفه تر سره کړیده، او خپل مسؤلیت یې د خپل وس مطابق په پوره ایمان داري او خلوص سره رفع کړی دی.

د دعوت بنیادي مقصد یې د شرک او بدعاتو رد، د الله تعالی وحدانیت او یو والی ته د خلقو رابلل، او په اسلامي ټولنه کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم

د سنتو او طریقو معمول کرځول ؤ، او په دغه لاره کښې دی د الله پاک نه پرته د بل چا ځخه نه ویریده او نه یې ورله پروا ساتله.

ابن تیمیه رح د اسلام په تاریخ کښې د دعوت او جهاد په لاره کښې هغه ځلانده ځیره ده چې خپل ټول عمري د علم په تحصیل، تدریس، تالیف، او د دین ځخه د دفاع، او د اسلام د د ښمنانو په مقابل کښې په قتال او جګړه کښې تیر کړی دی، او په دغه برخه کښې یې داسې ستونزې او کړاونه ګاللي دي چې تاریخ به یې تر قیامته هیر نکړي

دی په خپل عصر کښې یو بې ساره علمي ځواک خاوند ؤ الله پاک ورته په خپله مهرباني سره داسې علم او پوهه ور کړې وه چې د عقل خاوندان ورته حیران پاتې ؤ.

حافظ عمر بن علي البزار لیکلي دي چې یوه ورځ دی د دې حدیث متعلق (لَعَنَ اللهُ الْمُحَلِّلَ وَالْمُحَلَّلَ لَهُ) وپوښتل شو نو دی په دې اړه داسې مفصل بحث وکړ چې یو لوی ټوک کتاب ترینه جوړ شو.

دوی دا هم لیکلي دي چې د تعجب ور خبره دا ده چې شیخ یو زیات شمیر لوی او کوچنی کتابونه په زندان کښې په داسې حال کښې تصنیف کړي دي چې د مطالعې لپاره ورسره هیڅ کتاب موجود نه ؤ، او بیا هم ده له یاده ځخه پرخپلو

تالیفاتو کښې ټول هغه څه ذکر کړي دی کوم چې ضرورت وي، د مثال په توګه احادیث، آثار، د علماوُ اقوال د محدثینو او مؤلفینو او د دی د تالیفاتو نومونه یی په تفصیل سره بیان کړی او لیکلی دی.

د غه راز د ټولو هغو کتابونو نومونه په کوم کښې چې د غه احادیث، آثار او د علماوُ او محدثینو اقوال ذکر دی، په فصل او باب سره په ګوته کړی دی، او چې کله د غه تصانیف د ځیرو نکو لخوا د مطالعی لاندی نیول شوی دی نو الحمد لله غلطی په کښې مندل شوی نه ده.

امام ذهبی لیکلی دی چې شیخ الاسلام ابن تیمیه لکه څنګه چې د صحابهوُ او تابعینو دا راوُ او مسلکونو په باب کافی معلومات او اګاهی درلوده، د غه راز یی د څلورو مشهورو مذهبونو متعلق هم داسی مطالعه لرله چې کله به ترینه په کومه مسأله کښې پوښتنه وشوه نو ده به وړته په د غه مسئله کښې د څلور وارو مذاهبو اقوال په تفصیل سره مدلل بیان کړل.

ذهبی دا هم لیکلی دی چې ده د قرآن او سنت په استناد سره په ډیرو مسائلو کښې داسی فتواګانی ورکړی دی چې هغه په څلورو مذاهبو کښې وجود نه لری. دغه ډول ذلیکلی دی چې نوموړی هیڅ کله د کوم معین او تاکلی مذهب پر اساس فتویٰ نه ده ورکړی بلکښې د هغه دلیل پر بنیا دیی

حکم کړی دی چې د ده په نزد سنتی «صحیح» ثابت شوی دی. ذهبی وایې په دی برخه کښې د ده مقصد د رسول الله صلی الله علیه وسلم سنت او د سلف صالحینو طریقه ژوندی کول او رواجول ؤ.

علامه کمال الدین ابن زملکانی ویلی دی:

کله چې به د ده (شیخ الاسلام ابن تیمیة) نه د علم په یو فن کښې سوال وشو او ده به په بحث شروع وکړه، نو آوریدونکی اولیدونکی به داسی گمان کاوه چې گنی دی د دی فن څخه پرته په بل فن باندی نه پوهیږی او داسی به گڼله چې بل هیڅوک د ده په شان په دی فن کښې معلومات نه لری.

د شیخ د علمی مجلس د حاضرینو جملی څخه دابن الدوری په نوم یو عالم وایې: د شیخ څخه یوه ورځ یو یهودی په شعر سره چې (۸) آته بیتونه جوړیدل د قدر په باره کښې پوښتنه وکړه، پس شیخ لږه شیبه سکوت اختیار که او بیا یې په لیکنه باندی شروع وکړه، مونږ داسی گمان کاؤ چې گنی په نثر سره به یې ځواب نوشته کوی، ولی ده چې کله لږ وخت روسته حاضرینو ته ځواب آورولونو وولیدل چې تقریبا (۱۸۴) بیتونه یې د سوال د اشعارو د بحر او قافیی مطابق لیکلی ؤ او د ټولو علوموا و فنونو رعایت پکښې په کامله توګه شوی ؤ.

د شیخ الاسلام ابن تیمیة د مناقبو د لیکونکو د جملی څخه حافظ عمر بن علی البزار متوفی ۷۴۹ هـ په خپل تالیف (الاعلام

العلية فی مناقب ابن تیمیة، کښې لیکلي دي: شیخ به د رسول الله صلی الله علیه وسلم ذکراو یادونه د صلی الله علیه وسلم څخه پرته بېخي نه کوله او څه داسې په الله تعالی باندې تسمروي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم د تعظیم، درناوي او اتباع په برخه کښې د ده څخه زیات بل څوک نه دی لیدلی، ځکه چې کله به په یوه مسئله کښې کوم حدیث موجود و او دې به په دې پوه شو چې داد بل حدیث په ذریعه سره نه دی نسخه شوی، نو هغه ځائ بېي معمول بها گرځولو او د هغه حدیث په تقاضا به یې فیصله او فتوه صادره وله او د نورو هلوتا تو څخه به یې د بل هیڅ چا قول ته که هرڅوک به و کوم التفات نه کاوه.

شیخ د تالیف او تصنیف په ساحه کښې خاص او څانگړې مهارت درلوده. او د هغه درجه د ه چې تالیفات یې وا په او غټې د مورخینو او حفاظو په قول سره د یو زر ۱۰۰۰ څخه زیات حساب شوي دي.

حافظ ابن قیم، حافظ ابن کثیر، حافظ ابن قدامه، او حافظ ابن ذهبي د ده مشهور د شاگردان دي، او د دغه لوړ علمي شخصیتو نورد ذل او جامعي ته وړاندې کول د ده علمي پیاوړتیا د جوته ونې په برخه کښې یو څرگند دلیل دی.

حافظ ابن کثیر په البدایه والنهایه کښې لیکلي دي چې شیخ الاسلام ابن تیمیة د ۷۲۸ هـ کال د ذي القعدې د میاشتې په (۲۰) نیټه د دوشنبې د شپې سحر مهال یعنې د

سبا صادق د راختلو په وخت په زندان کښې ځېله روح ځپل حقیقي مالك ته په داسې حال کښې وسپارله چې په زندان کښې یې د دنه قرآن کریم اتیا ځله ختم کړی وُ، او په شپیتو آیتایم وار سره د سورة قمر اخرني آیا تو نو (اِنَّ الْمُتَّقِیْنَ فِیْ جَنّٰتٍ وَّ نَهَرٍ ۙ فِیْ مَقْعَدِ صِدْقٍ عِنْدَ مَلِیْكٍ مُّقْتَدِرٍ) ته رسیدلی وُچې بیا د سورة رحمٰن داول څخه متباق قرآن مجید دوه مشهور و شیخا نو: عبدالله بن المجد او عبدالله الزرعی الضریر چې شیخ رحمه الله به د دوی قرأت ډېر خوښولو په همدغه ورځ ده ته د غسل ورکولو څخه مخکښې ختم کړ.

څنو موږ خپتولیکلی دی چې د شیخ ع په جنازه کښې (۱۵) زره ښځې او د (۶۰ نه تر ۳۰۰) زره پوري نارینه حاضر وو، او حافظ عمر بن علی البزار لیکلی دی چې د ده د جنازې د حاضرینو څخه یو تو لکې په دې خبره اتفاق لري چې په شیخ باندې د جنازې د لمونځ کونکو تعداد د پنځه سوو زره څخه زیات وُ او تاریخ پوهان وايي چې د احمد بن حنبلؒ د جنازې څخه رو سته دا دویمه جنازه وه چې په دومره لوی شمیر کښې لمونځ کونکي پکښې راجمع شوي وُ.

ابن کثیر وايي: د شیخ د مخلصینو د جملې څخه یو کس چې کله په جنازه کښې دومره زیاتنه کښه کونه ولیدله نو په اوچت آواز سره یې او ویل: هکذا تکون جنائز

اهل السنة م یعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم دسنتو د پیروانو جنازی همد غسی وی !.

او د سید المرسلین، خاتم النبیین محمد صلی الله علیه وسلم د پیروی پر اساس یې په ژوند کښې هم سرمایه صرف علم ؤ او د مرګ نه یې روسته هم یوازې علم په میراث سره پریښود ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایې علماء د انبیاؤ وارثان دی، او انبیاؤ درهم او دینار په میراث سره نه دی پریښی بلکښې معنوی علم په میراث سره پریښی دی.

الله پاک دې په ده باندې د رحمېږې او جنت الفردوس دې ورله نصیبه وکړ حُوی. آمین

ژباړن )



بسم الله الرحمٰن الرحیم

# د ځیرونکی سریزه

ان الحمد لله نحمده و نستعینه و نستغفره و نعوذ بالله من شرور انفسنا، و من سیّئات اعمالنا من یهده الله فلا مضل له، و من یضلل فلا هادی له و اشهد ان لآ الٰه الاّ الله وحده لا شریک له و اشهد انّ محمّدا عبده و رسوله"-

امّا بعد: د الله تعالیٰ او مخلوق، یعنی د الله پاک او بندګانو ترمینځ د واسطې مسئله یقینا چې ډیره "خطرناکه" خطیرة مهمه او درنه موضوع ده خوا فسوس چې اکثره مسلمانان ترینه غافل او ناخبره دي- او د همدغه غفلت نتیجه ده چې نن د غه اوْهام پرستې او بې لارې توبونه او د مسلمانانو ذلت، شکست او سپکاوی وینو او کورویې او د هغه نصرت او تائید ځنه د کوم وعده چې الله پاک له مونږ سره د شریعت په پیروی او په الله تعالیٰ باندې د توکل کولو په صورت کښی کړې وه محروم او بې برخې یو، الله تعالیٰ په خپل مبارک کتاب قرآن کریم کښی فرمایلې دي:

﴿ وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ. ﴾ (۱)
«او حق دې په مونږ باندې نصرت د مؤمنانو»
همدارنګه الله تعالی فرمایلي دي:
﴿ إِنْ تَنْصُرُوا اللَّهَ يَنْصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ ﴾ (۲)
که چېرې مدد وکړئ تاسې د الله د دین سره نو مدد به وکړي الله له تاسی سره او ثابت او ټینګ به کړي قدمونه ستاسو» دغه رنګ فرمایي:
﴿ وَلِلَّهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِ وَلِلْمُؤْمِنِينَ. ﴾ (۳)
او خاص ده لره دي عزت او غلبه او پیغمبر د ده لره دی او مؤمنانو لره دی». همدارنګه یې فرمایلي دي
﴿ وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ. ﴾ (۴)
او تاسو غالب یئ که چېرې یئ تاسو پوره ایمان والا.»
اوس د دغه نصرت چېرته دی، د دغه عزت چېرته دی، او د مسلمانانو د دغه برتري او غلبه چېرته ده؟!
د حق او خلق یعنی د الله تعالی او بندګانو ترمینځ د واسطې پېژندلو په برخه کښې خلق درې ډلې شوي دي:
(۱) یوه ډله هغه خوک دي چې هغوئ رسول الله صلی الله علیه وسلم د شریعت د تعلیم او ښوونې په

(۱) سورة الروم: ۴۷ - (۲) سورة محمد: ۷ - (۳) منافقون: ۸
سورة آل عمران: ۱۳۹

برخه کښې د یواځنۍ واسطې په توګه نه منی -

دې دیوې پوچې دعوې په وجه د غه شریعت (خلقو) یواځې د عوامو لپاره خاص کړی، او د علم الظاهر په نوم سره یې مسمی کړې دی، او د هغو عباداتو په برخه کښی، په هغو اوهامو او خرافاتو باندې استناد کوي، چې د وی یې علم باطن بولی او د «کشف» په نوم سره یې یادوی، او په حقیقت کښی هغه بل څه نه دی صرف دروغ، ابلیسي وسوسې او شیطانې واسطې دی چې د اسلام د اصولو او بنسټونو څخه مخالفی دی،..

دوئ د دغه مزخرفی عقیدې د روا جولو لپاره خپل آوان دا سې اوچتوي: «حَدَّثَنِيْ قَلْبِيْ عَنْ رَبِّيْ»!! یعنی زړه می راته د خپل رب څخه خبر راکړې دې-!!

دوئ په دې لړکښی د هغو علماؤ پورې کوم چې د شریعت پیرودي، ټوقې او مسخرې کوی او وایی: د دې خپل مړ علم د مړی څخه حاصل کړې دې، او د علم باطن پیروان بدون له کومې واسطې څخه خپل علم د ژوندی او قیوم ذات څخه حاصله وی، د دې د دغه فتنې په وجه ډیر عوام تباه او بې لارې کړل، او د انحراف، فساد او ضلالت

په لوریې روان کړل.

د وې د پېرد غیرو مشروع امورد کوم چې د دوې په کتابو نو کښې لیکل شوې دې، مرتکب کرځیدلې دې، او دا هغه څه دې چې علمایې د دوی دا رندادیې کفر او قتل او اسباب کنړې.

د وې د شریعت د لو مړې اصل څخه یا دا چې خبر نه دې، او یا دا چې په زوره یې ځنې ځانونه په ناخبره کښې اچولي دي، ځکه د دغه اصل له مخې هر څوک چې د الله پاک د هغه قانون او کتاب پرخلاف کوم چې الله تعالی په خپل نبي محمّد صلی الله علیه وسلم باندې نازل کړې دې عمل وکړي نو هغه په یقیني توګه کافر دی، او په کفر کښې یې هیڅ شك او شبه نشته ځکه الله تعالی فرمایلي دې:

«فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا» (۱)

ترجمه: پس نه ده داسې، قسم دې ستا په رب باندې چې نشي مؤمنان کیدای دوې تر هغه پورې چې حاکم کړي تا لره یعنې فیصله وکړي په تا باندې

(۱) نساء: ۶۵ -

په هغه معامله کښې چې پیدا شوی وی په منځ
د دوی کښې بیا و نه مومی دوی په خپلو ژړونو
کښې خپګان د هغې فیصلې نه چې تاکړی دی، او
ویې منی دوی په منلو سره یعنې بې له جګړې په
خوښۍ سره۔

د غه راز کله چې شیطان د دوی لپاره خپل اعمال
ښایسته وګرځول او د علم او دارنګه د علم د ښا
د لمنځه وړلو لپاره یې مقابله پیدا کړه نو نتیجه یې
دا شوه چې په تېرو تیارو کښې روان شو او د خپلو
او هامو او خیالاتو په جال کښې ګیر شو، او بیا د همدغو
پوچو او پرسود ه خیالاتو په تیاره کښې د الله تعالی په
عبادت باندې بوخت شول۔

دوی په مثال د هغه چا دی چې الله پاک د هغو
په هکله په قرآن کریم کښې داسې فرمایلی دی:

﴿قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا
الَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا
وَهُمْ يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا
أُولَٰئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ
وَلِقَائِهِ فَحَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيمُ
لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا﴾ (۱)

---

(۱) کهف: ۱۰۳ - ۱۰۵

ترجمه: ووایه آیا خبر درکړم تاسو ته په باره د تاوانی عمل والاؤ کښې، داهغه کسان دی چې برباد دی عمل د دوی په ژوند د دنیا کښې، او دوی گمان کوی چې یقینا دوی ښائسته عمل کوی، دا هغه خلق دي چې کفرېې کړي دي په آیاتونو د خپل رب او په ملاقات د هغه نو برباد دی عملونه د دوی پس وو به نه ددوو ددوی لپاره د قیامت په ورځ هیڅ تله

بیا دغه طائفه خلق په متعدد ډلو باندې تقسیمیشل شوی دی چې په بیلا بیلو طریقو باندې روان دی او ځنې یې دځنو نورو سره په جنګ او جګړه باندې اخته او مبتلا دی، او دا په دې خاطر چې دوې د صراط مستقیم څخه کومه چې د منعوم علیهم لاره لری واټن دی، او لکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یې په خپل مبارک قول کښې یادونه کړې ده، د دغو ټولو فرقو او ډلو ځای د جهنم وور دی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایی:

«ستفترق امتی علی ثلاث وسبعین فرقة ثنتان و سبعون فی النار، وواحدة في الجنة وهی من کان علی مثل ما انا علیه واصحابی»

رواه ابوداؤد، والترمذی، والنسائی وابن ماجة بسند صحیح عن ابی هریرة رض.

«زردی دی چې امت به مې په درې اویا ړ لــو تقسیم شي چې دوه او یا به یې په اور کښې وی یعنې جهنم ته به ځي او یوه ډله به په جنت کښې وی یعنې جنت ته به ځي، او دغه ډلـه هغه څوك دی چې په داسی دین، ملت او لار کا درومی کومه چې زما او زما د ملګرو (صحابه وُ) طریقه، لار او دین دی»

دغه حدیث ابوداود، ترمذی، نسائي، او ابن ماجه په سیې سند سره د ابوهریره رضی الله عنه څخـه روایت کړی دی -

۲- دویمه ډله د دوی څخه هغه څوك دي چې د غنه واسطې په برخه کښې یې د مبالغې نه کار اخستی دی او د هغې غلطې عقیدې په وجه یې د واسطې څخه داسې مفهوم اخستی دی چې هغه هیڅ د واسطې مفهوم او مقصد کیدلی نه شي؛ پس دوی د همدغه غلطۍ پربنا د رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارك ذات او د نورو انبیاوو، او نیکانو خلقو ذوات واسطې نیولی دی او دا عقیده ساتي چې الله تعالی د بندګانو هیڅ عمل نه قبلوی مګر هله یې قبلوی چې په دغــو واسطو سـره الله ته پنا ور وړی، او دغه واسطې د دوې لپاره د الله پاك په وړاندې وسیله وګرځي (تَعَالَىٰ عَمَّا يَقُوْلُـــوْنَ عُلُوًّا كَبِيْرًا)

الله منزه او مقدس ذات دی، او د پیرو لویو
صفتونو څښتن دی، دوی چې څه وايي هغه دالله
د شان سره مناسب نه دی - العیاذُ باللهِ دوی الله تعالیٰ
په داسې صفت سره متصف وګرځولو چې حتی هغه
ظالم او مستبد پاچایان چې په خپلو دروازو کښې
یې پیره داران او څوکیداران ودرولی وی، او د
واسطو والاؤ نه په غیر بل څوک نه شي ورننوتلی
هغه به هم په د غو صفتونو سره متصف نه کړې شي.
که واقعیت په نظر کښې ونیول شي نو د غه
دول عقیده ساتل بیخی دالله تعر د کلام سره ضدیت
لری څکه الله پاک فرمایي:
﴿وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ
أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ فَلْيَسْتَجِيبُوا
لِي وَلْيُؤْمِنُوا بِي لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُونَ﴾ (۱)
ترجمه: او هر کله چې پوښتنه وکړی له تا څخه
بندګان څما، له حال زما څخه - نو بیشکه زه نژدې
یم، قبلوم دعا د دعاکونکی کوم وخت چې وغواړې
له ما څخه، پس و دی منی حکمونه زما او ایمان
دی راوړی پر ما ریقین دی وکړی په قبول د دعا
سره، بنایي چې دوی په سمه لاره محکم پاتې شي.

---

(۱) بقره: ۱۸۶ -

په دغه مبارك آيت کښې دیته ګوته نیول شوې ده چې الله تعالی ته د رسیدو لپاره یوا ځنۍ واسطه په الله تعالی باندې قوي او سپې ایمان لرل دي او بیا په مشروع طریقه باندې د الله پاك عبادت کول دي.

د غه راز په دې مبارك آيت کښې عبادت د ایمان څخه ځکښې ذکر شوی دی، او د اپدې خاطر چې خلق دیته متوجې شي چې عمل صالح یعنې نیك عمل ډیر زیات ارزښت او اهمیت لري او د الله تعالی د رضا حاصلولو او جنت ته د تللو لپاره یو ضروري شرط دی؛ او الله تعالی چې په قرآن کریم کښې د کومې وسیلې ذکر کړي دې د هغې څخه هُم مقصد طاعات او نیك عملونه دي، او د اهغه یوا ځنۍ واسطه ده چې تا الله پاك ته نژدې کوي، او د الله تعالی د رحمت دروازې درته پرانزي او جنت ته دې ورننباسي الله تعالی فرمایلي دي:

(يَآ أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَابْتَغُوْآ إِلَيْهِ الْوَسِيْلَةَ وَجَاهِدُوْا فِيْ سَبِيْلِهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ) (۱)

ترجمه: اې ایمان والاؤ! وویریږئ د الله تعالی نه او ولټوئ خاص الله تعالی ته نژدې والې په

---

(۱) مائده: ۳۵

طاعت سره، او جهاد وکړئ په لار د الله تعالی کښې د دې لپاره چې کامیاب شئ یعنې مراد ته ورسیږئ.

الله پاک د هغه جهالو او ناخبرو خلقو د سپکاوي او سپورتیا په برخه کښې چې د الله تعالی نیک بندګان یې، وسیله نیولي دي داسې فرمایلي دي:

«أُولَـٰئِكَ الَّذِينَ يَدْعُونَ يَبْتَغُونَ إِلَىٰ رَبِّهِمُ الْوَسِيلَةَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ وَيَرْجُونَ رَحْمَتَهُ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُورًا» (١)

ترجمه: هغه کسان چې دوی یې عبادت کوي «رامداده ورته وایي» په خپله هغوې خپل رب ته نژدې والې لټوي چې کوم یو به له دوې نه ډیر نژدې وي (الله ته)، او امید لري دوې د رحمت د هغه (الله) او ویریږي د عذاب د هغه نه یقیناً ستا رب له عذابه ویره کیدای شي.

په دغه مبارک آیت کښې دا خبره په ډاګه شوې ده چې نیک اعمال الله تعالی ته د تقرب حاصلولو یواځنۍ لاره ده، او د دې سینه پرته بله کومه لار الله پاک ته د نژدې کیدو لپاره وجود نلري او هغه نیک بندګان چې دوې وسیله نیولي دي

(١) الاسراء: ٥٧.

هغوې په خپله دخپل ځان لپاره دغې د سیلې ته احتیاج او اړتیا لرې۔

دغه ناپوهه خلق په دې خاطرچې ستومانه نشي د دغو واسطو په ذواتو باندې اتکا کوی او د خپلې غلطۍ او تیروتنې پروجه نه نیک اعمال ترسره کوی او نه د حرامو څخه ځانونه ساتي۔

د مسلمانانو د خطاکیدو او انحراف لویه وجه داده چې دوئ د الله تعالیٰ هغه مبارك قول چې په هغې کښې یې د آدم علیه السلام د ټول اولاد سردار جناب محمّد رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په خطاب کولو کښې فرمایلې دې:

(قُلْ لَآ اَمْلِكُ لِنَفْسِىْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا)(۱)

هیر کړې دې او یا تر بینه هیرشوې دې، ځکه په دغه آیت کښې الله پاك فرمائیی:

پیغمبره! دوئ ته او وایه چې زه د خپل ځان لپاره نه د ګټې رسولو مالك یم او نه د ضرر د قم کولو مالك یم۔

د غه راز د رسول الله صلی الله علیه وَسَلم هغه قول چې خپلې ګرانې لور فاطمې رضی الله عنها ته یې پکښې فرمایلې دی: ای فاطمې! د خپل ځان د نجات لپاره عمل

(۱) اعراف: ۱۸۸ -

دکړه ځکه چې زه تا د الله تعالی د عذاب څخه نشم خلاص ولې. (۱)

دغه ډول د رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه قول چې فرمایي. کله چې انسان مړ شي نو دهغه عمل قطع شي مګر د درې شیزو نو ثواب ورته رسیږي چې هغه صدقه جاریه ده، علم نافع دی او ولد صالح دې چې دعا ورته کوي.

دغه حدیث چې معنایې ذکر شوه مسلم روایت کړی دی

په دې باره کښې د عمر رضي الله عنه له پلوه د عباس رضي الله عنه په دعا سره وسیله نیول، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارک ذات وسیله نه نیول یوازې قناعت بخش دلیل دی چې حتی که په نصوصو کښې د انبیاؤ او صالحینو په ذواتو باندې د وسیلې نیولو څخه منع هم نه ده راغلې، نو دغه طائفې د رد لپاره همدغه کافي ؤ.

دغه ډول د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه یو ډیر ارزښتناک قول در مختار او دا حناف بعضو نورو کتابونو په دې برخه کښې داسې نقل کړی دی: «وَاَكْرَهُ اَنْ يَّسْأَلَ اللهَ اِلَّا بِاللهِ» دی وایي زه دا خبره بده ګڼم چې د الله تعالی څخه پرته په

(۱) دغه حدیث چې معنائې ذکر شوه بخاری روایت کړی دی.

بل څه باندې دالله نه سوال شی۔

همدارنګه که الله پاک ته د ذکر شویو ذواتو ذوات واسطه نیول جائز وای نو خامخا به یې ذکر په هغو د عاما نوکښې راغلې وای چې په قرآن کریم او احادیثو کښې موجودی دی۔

هو: کله چې د یو مسلمان سره دا شوق پیدا شی چې الله پاک ته په وسطو سره ځان نژدې کړی نو کولې شی چې د الله پاک څخه دالله په ذات یا د ښېلو اعمالو د جملې څخه په یو عمل یا دالله تعالی د نومونو څخه په یو نوم، او یا د ده د صفتونو څخه په یو صفت باندې سوال وکړی.

(۳)۔ د مسلمانانو څخه ځنې داسې کسان دی چې هغوی دالله او بندګانو ترمنځ دغه واسطه یو رسالت کښې چې بیا د غه رسالت د تبلیغ، تعلیم او تربیې څخه عبارت بولی، دغه ډول د وې د دغه رسالت اهمیت، او ورته د بشری ټولنې د ضرورت او اړتیا اندازه هم درک کړی ده، او همدا وجه ده چې دوئ په ډیرې جلتئ سره محمّد رسُول الله صلی الله علیه وسلم ته یعنی د رسول الله صلعم شریعت ته ور دروجې ترڅو د وحې په رڼا کښې د ده په دین باندې د ځان پوهه ولو په برخه کښې دی

رسول الله صلی الله علیه وسلم) یوه ستره واسطه او عظیمه وسیله ونیسي. پس دوی له همدې امله د رسول الله صلی الله علیه وسلم سیرت او سنت نسي لولي لکه څنګه چې قرآن کریم لولي او شعاریي په دې برخه کښې دا الله پاک دغه مبارک فرمان دی:

(قَدْ جَآءَكُم مِّنَ اللَّهِ نُورٌ وَكِتَابٌ مُّبِينٌ يَهْدِي بِهِ اللَّهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهُ سُبُلَ السَّلَامِ وَيُخْرِجُهُم مِّنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ بِإِذْنِهِ وَيَهْدِيهِمْ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ) (۱)

ترجمه: یقیناً راغلی دی تاسو ته دا الله له طرفه نور (رڼا یعنی محمد م) او کتاب واضح بیان والا چې ښوونه او هدایت کوي په هغه سره له هغې سره الله تعالی هغه چا ته چې تابعداري کوي د رضا دده په طرف د لارو د سلامتیا، او اُو باسي دوی له تیارو (د کفر، شک، جهل، څخه نور (رڼا د ایمان، یقین، علم، ته په حکم خپل سره، او هدایت ښودنه، کوي دوی ته په طرف د لارې سمې صافې (د توحید).

دغه په له هماغه ناجیه فرقه ده چې په وړاندې ذکر شوې، حدیث کښې ورته ګوته نیول شوې ده

---

(۱) مائدة: ۱۵: ۱۶ .

او د جنت زیری ور ته ورکړل شوي دي.

اما متأسفانه د دغه فرقې ډلې، لاره ډېره زیاته سخته او ازغنه، یعنې د مشکلاتو او کړاوو نوځکه ډکه لاره ده، ځکه حقیقي اسلام غریب او نااشنا ګرځېدلی دی، او اکثرو مسلمانانو ورته شاوې اړولې دي او د ځانونه یې ورنه په لرې مسافه کښې نیولي دي، او د واقعي اسلام په بدل کښې یې بدعات او خرافات معمول او مروج ګرځولي دي.

د دغه مصیبت او فتنه د ډیرې پخوانۍ زمانې څخه را په دې خوا جریان لري او مصلحینو په کښې د اصلاح لپاره په ډېر تکلیف سره خپل رول لوبولی دی. عمر بن عبد العزیز رضی الله عنه د دوئ د جملې څخه په دې هکله داسې ویلي دي:

مونږ د یو داسې کار د اصلاح لپاره کار شروع کړی دی چې د الله پاک نه پرته بل څوک په دغه لاره کښې مرسته نشي کولې، دا داسې یوه لاره ده چې د سپین ږیرو او مشرانو ژوند پکښې پای مومي، او واړه او صغیر هلکان پکښې ځوانۍ ته رسیږي، دې وایې: یوا طرافي او بانډه چې به، یو ناوړه او ناروا عمل تر سره کوي او دا ګمان به ورباندې کوي چې دا دین دی او حال دا چې هغه به د الله (ج) په نزد

باندې دين نه وي.»

د اسلام او مسلمانانو د غه ړول حال په باره کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د یوحدیث مفهوم داسې دی؛

د اسلام منونکی لکه څرنګه چې په ابتداء کښې غرباء او کمزوري ؤ، دارنګه په آخره کښې به هم غرباؤ ته پاتی وی پس نیك مرغه او مبارك دی وی حال د غریبانو -

د غو غرباؤته رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپل مبارك قول کښې د جنت زیرې په دی ډول سره ورکړی دی:

«سَتَفْتَرِقُ اُمَّتِیْ عَلٰی ثَلٰثٍ وَسَبْعِیْنَ فِرْقَةً اِثْنَتَانِ وَسَبْعُوْنَ فِی النَّارِ، وَوَاحِدَةٌ فِی الْجَنَّةِ وَهِیَ: مَنْ كَانَ عَلٰی مِثْلِ مَا اَنَا عَلَیْهِ وَاَصْحَابِهٖ

دغه ناجیه فرقه «د الله پاك د عذاب څخه نجاب مندونکی ډله» یقیناً هغه څوك دی چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د احادیثو پیروی، الله پاك دې ورله مړی مرحوم وګرځوی او د ژوندو په ژوند کښې دی ورله برکت واچوی او د خپل قوت اوطاقت په ذریعه دی ورسره مدد او مرسته وکړی څکه همدوی دی چې د هدایت او لارښوونې ستورې

او مشالونه دی، او د تقوی او سمی لاری په لو ر
بلو نکی او دا عیان دی، چاچی د دوئ سره دښمنی
کړې ده نوهغوی هلاک شوی دی، او چاچې د دوی
پیروی پریښې ده نوهغوئ گمراه شوی دی، د دوی
دعوت بالکل علنی او ښکاره دی، او د حق په لاره
کښی د ملامت شوی د ملامتیا څخه نه ویریږی
او س نوره خبره شیخ الاسلام ابن تیمیه (رح) ته
پریږدو چی دغه واسطه په خپله ارزښت ناکه
رساله (الواسطة بین الحق والخلق) کښی تشریح او
روښانه کړی۔
دا رساله د دې ور ده چی په طلاؤ یعنی په
سرو زرو سره ولیکل شی او مسلمانان یی په پوره
سوچ او فکر سره ولولی تر څو د غفلت د خوب څخه
راپیدار شی او د نصرت، قوت او سرلوړی په لوری
گامونه اوچت کاندې او د انبیاوو او نورو نیکانو
بندگانو قبرو نو ته تیتې د ل او پرې وتل، او په
عاجزئ، ذلت او سر ښکته کولو سره یی د در بارو نو
د دروازو مسح کول او ښکلول پریږدی۔
وصلی الله علی سیدنا محمد معلم الخیر، وعلی آله
وصحبه وسلم۔

**محمود مهدی الاستانبولی۔**

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَسَلٰمٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى آللّٰهُ خَيْرٌ اَمَّا يُشْرِكُوْنَ) (۱) اَمَّا بعد:

دغه رساله د هغو دوکسانو د بحث په باره کښې د پرېکړې په غرض ليکل شوې ده کوم چې يو يل سره په ځينو منځ کښې مباحثه درلوده، او يو کس د دغو دواړو ځنه وديل:

د الله پاك او زمونږ ترمنځ ځاماخا يوې واسطې ته ضرورت دى ځکه مونږ د دغه واسطې ځنه پرته الله پاك ته د تقرب او رسيدو توان او وس نه لرو.

**د الله (ج) او بندګانو ترمنځ د واسطې معنٰی**

الحمد لله رب العلمين. ثنا او ستاينه يواځې الله لره ده چې رب د مخلوقاتو دى. که د دې خبرې مقصد داوى چې مونږ ته د الله تعالٰی دحکم په رارسولو کښې حتما يوې واسطې ته ضرورت دى؟

(۱) سورة نمل (۵۹) ترجمه: ووايه اى محمده! چې ټولې ثناګانې او ستاينې خاص الله لره دې او سلام دې په هغه بندګانو د ده چې غوره کړي دى الله آيا الله غوره دى يا هغه څه چې شريکوى يې دوى د الله سره.

نو دا یوه پر ځائ او حقه خبره ده، ځکه مخلوق په دې نه پوهیږي چې الله پاک د کوم شي سره مینه لري، په کوم بانديې خوښیږي، دکوم عمل په تر سره کولو بانديې يې امر کړی دی، او دکوم شي دکولو څخه يې منع کړې ده، او دغه راز دخپلو دوستانو لپاره يې څه ډول درجې او نعمتونه تیار کړي دي، او دخپلو دښمنانو لپاره يې دکوم کار په کولو سره د عذاب ورکولو وعده کړې ده، او دا رنګه هغه عذابونه په څه ډول او څنګه دي.

دغه ډول مخلوق ته د الله تعالی د اسماؤ حسنیٰ او (ښکلو نومونو) او عالیه صفاتو د پیژندلو په برخه کښې چې عقل د هغو د معرفت څخه عاجز دی، معلومات نه وُ، دغه راز د دې نور امثال دي چې انسان هغه حاصلول ور باندې د انبیاؤ علیهم السلام پوري کوم چې الله جل جلاله خپلو بندګانو ته رالیږلي دي، ارتباط او اړتیا لري.

پس هغه کسان چې د پیغمبرانو پیرو او ور باندې ایمان لرونکي دي هم دوئ هدایت مندونکي او هغه کسان دي چې د الله پاک پرنز د باندې د درنښت او قرب مقام لري او په دنیا او اخرة کښې دا او چتو درجو او عزت خاوندان دي.

اَمّا هغه څوک چې د انبیاؤ مخالفین دی هغوی
په یقینی توګه لعنتیان دی او په دنیا او آخرت کښې
د خپل پروردګار د هدایت څخه محروم او بې برخې دی

## چا چې قرآن ولوستلو او عمل یې ور باندې وکړ نه به ګمراه شي او نه به بدبخت شي

په دې برخه کښې رب العزت داسې فرمایلي دي :
﴿يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ إِمَّا يَأۡتِيَنَّكُمۡ رُسُلٞ مِّنكُمۡ
يَقُصُّونَ عَلَيۡكُمۡ ءَايَٰتِي فَمَنِ ٱتَّقَىٰ وَأَصۡلَحَ
فَلَا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَلَا هُمۡ يَحۡزَنُونَ ۝ وَٱلَّذِينَ
كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا وَٱسۡتَكۡبَرُواْ عَنۡهَآ أُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ
ٱلنَّارِۖ هُمۡ فِيهَا خَٰلِدُونَ﴾ (۱)

ترجمه: اې اولاد د آدم علیه السلام که راغلو
تاسو ته پیغمبران ستاسې له جنس نه چې بیانوی
په تاسو باندې آیتونه زمونږ نو هر هغه کس چې ځان
یې وساتلو د بد کارونو نه او خپل عمل یې اصلاح
کړو نو نه به وی هیڅ ویره په دوی او نه به دوی
غمژن کیږی.

او هغه کسان چې زمونږ آیتونو ته یې نسبت د دروغو

(۱) اعراف: ۳۵، ۳۶

وکړو او سرکشي يې وکړه د قيلولو د هغې نه هم دغه کسان او سيد ونکې داور (يعني دوزخ) دی، دوی په دغه اورکښو همېشه وی۔

**همدغه ډول الله تعالیٰ فرمايي؛**

(فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّي هُدًى فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقَىٰ، وَمَنْ أَعْرَضَ عَن ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَىٰ قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِي أَعْمَىٰ وَقَدْ كُنتُ بَصِيرًا، قَالَ كَذَٰلِكَ أَتَتْكَ آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا وَكَذَٰلِكَ الْيَوْمَ تُنسَىٰ) (۱)

ترجمه: پس که راغي ز ماله طرفه تاسو ته هدايت نوهر چاچې متابعت وکړو د هدايت ځما پس نه به ذی ګمراه کيږی (په دنياکې) او نه به بدبخت شي (په آخرت کښې) او هر چاچې زماله ياده مخ وګرځاوه، پس بيشکه ده ته دی ګزران (ژوندون) تنګ او پورته به کړو مونږ دلره په ورځ د قيامت کښې ړوند، و به وايي (دغه ړوند کافر) ای ربه ځما ولې دي پاڅولم زه ړوند حال داچې زه بينا وم (په دنياکښې) و به وايي دغه شان راغلې وُ تاته آيا تونه ځمونږ پس هير کړې وُ تا هغه، او هم دغه شان به نن ورځې ته هم هير کړی شی.

---

(۱) طه: ۱۲۳-۱۲۶-

## دغه رول د دوزخیانو د حال بیانولو

## په لړ کښې الله تعا راسې فرمايلي دي:

(كُلَّمَآ اُلْقِيَ فِيْهَا فَوْجٌ سَاَلَهُمْ خَزَنَتُهَآ اَلَمْ يَاْتِكُمْ نَذِيْرٌ، قَالُوْا بَلٰى قَدْ جَآءَنَا نَذِيْرٌ فَكَذَّبْنَا وَ قُلْنَا مَا نَزَّلَ اللّٰهُ مِنْ شَيْءٍ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ كَبِيْرٍ) (۱)

ترجمه: هر کله چې وغورځولی شي دوزخ ته یوه ډله (د منکرانو) نو پوښتنه به وکړي له هغوی نه څوکیداران (پیره داران) د دوزخ، آیا نه ؤ راغلی تاسو ته (ای منکرانو) ویروونکی (پیغمبر په دنیا کښې) نو وبه وایي (منکران) هو په تحقیق راغلی ؤ مونږ ته ویروونکی خو دروغژن وباله مونږ دی او وویل مونږ (هغوی ته چې) نه دی رالیږلی الله هیڅ شی نه یئ تاسې مګر په ګمراهۍ لویه کښې.

## دَغَه رَول اللّٰه تَعَالیٰ فَرمَايلي دي:

(وَسِيْقَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا اِلٰى جَهَنَّمَ زُمَرًا حَتّٰى اِذَا جَآءُوْهَا فُتِحَتْ اَبْوَابُهَا وَ قَالَ لَهُمْ

---

(۱) سورة ملك: ۸، ۹ -

خَزَنَتُهَا اَلَمۡ يَاۡتِكُمۡ رُسُلٌ مِّنۡكُمۡ يَتۡلُوۡنَ
عَلَيۡكُمۡ اٰيٰتِ رَبِّكُمۡ وَيُنۡذِرُوۡنَكُمۡ لِقَآءَ يَوۡمِكُمۡ
هٰذَا ؕ قَالُوۡا بَلٰى وَلٰكِنۡ حَقَّتۡ كَلِمَةُ الۡعَذَابِ
عَلَى الۡكٰفِرِيۡنَ۔ (۱)

ترجمه: روان به کړی شي کافران (په تېل وهلو سره) جهنم ته ډلې ډلې ترهغه وخته پورې چې راشي دوئ دوزخ ته، نو پرا به نستی شي دروازې دهغې (او به وايي دوی ته محافظان (څوکيداران) ددغه دوزخ آيا نه وُ راغلي تاسې ته رسولان ستاسې دجنس نه چې لوستل به دغه رسولانو پر تاسې آيتونه دقرآن د رب ستاسې، او ويره ول به دوی تاسې لره له ملاقات ددغه ورځې ستاسې نه، وُ به وايي دوی (کفار) ولې نه راغلي وُ مونږ ته او لوستلي يې وُ مونږ ته، لېکن ثابت شو حکم دعذاب پر کافرانو۔

ابن عباس رضی الله عنهما د قرآن کريم د معمول ګرځولو په برخه کښې داسې وېلې دی:

چا چې قرآن ولوستلو او هغه څه چې په قرآن کريم کښې دی په هغې يې عمل وکړ نو الله پاک يې متکفل دی نه به په دنيا کښې ګمراه او بې لارې شي او نه به په آخرت کښې بد بخت بن غه مرشي

(۱) سورة الزمر: ۷۱ -

## رسولان د الله او بندګانو ترمنځ د احکامو رسولو په برخه کښې واسطې دي.

الله جل جلاله په خپل مبارک کتاب قرآن کریم کښې فرمایلي دي:

(وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ فَمَنْ آمَنَ وَأَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ. وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ.) (۱)

ترجمه: او نه لیږو مونږ رسولان مګر زیری کونکي (مؤمنانو ته په نعیم سره)، او ویره ورونکي (کفارو ته له جحیم څخه)، پس هر چا چې ایمان راوړ او اصلاح یې کړه (عمل په طاعت سره)، نو نه به دی هیڅ قسم ویره پر دوی باندې او نه به دوی خفه کیږي، او هغه کسان چې دوی نسبت د دروغو کوي آیتونو زمونږ ته وبه رسیږي دوی ته عذاب په سبب د هغې چې دوی فاسقان وو.

همدغه ډول الله تعالی د قرآن کریم په بل ځای کښې فرمایلي دي:

(إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَى نُوحٍ وَالنَّبِيِّينَ مِنْ بَعْدِهِ وَأَوْحَيْنَا إِلَى إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ

---

(۱) د انعام سورة: ۴۸ او ۴۹ نمبر آیتونه.

وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ وَعِيْسٰى وَ
اَيُّوْبَ وَيُوْنُسَ وَهٰرُوْنَ وَسُلَيْمٰنَ وَاٰتَيْنَا
دَاوٗدَ زَبُوْرًا ۝ وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنٰهُمْ عَلَيْكَ
مِنْ قَبْلُ وَرُسُلًا لَّمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ
وَكَلَّمَ اللّٰهُ مُوْسٰى تَكْلِيْمًا ۝ رُسُلًا مُّبَشِّرِيْنَ
وَمُنْذِرِيْنَ لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ عَلَى اللّٰهِ
حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ (۱)

ترجمه: بیشکه چې مونږ وحي کړې ده تا ته لکه څنګه چې وحي کړې ده مونږ نوح علیه السلام ته او نورو انبیاؤ ته پس له هغه نه، او وحي کړې ده، مونږ ابراهیم ته او اسمٰعیل ته او اسحٰق ته او یعقوب ته، او اولاد هغوی او عیسیٰ ته او ایوب ته او یونس ته او هارون او سلیمان ته، او ورکړې وو مونږ داود ته زبور، او وحي کړې وه مونږ ډیرو رسولانو ته چې بیان کړي دي مونږ د هغوی تا ته مخکښې له دینه او نورو ډیرو رسولانو ته چې هغوی مونږ نه دي بیان کړي تا ته او خبرې کړې دي الله تعالیٰ موسیٰ سره خبرې کول او لیږلي مودي رسولان زیرې ورکونکي او ویره ورکونکي د دې لپاره چې نه وي خلکو لره په الله باندې دلیل او بهانه پس د لیږلو د رسولانو نه-

---

(۱) سورة النسآء : ۱۶۳ - ۱۶۵ -

# همو د ارنګه الله تعالیٰ فرمایي:

«اَللّٰهُ یَصْطَفِيْ مِنَ الْمَلٰٓئِکَةِ رُسُلًا وَّمِنَ النَّاسِ» (۱)

ترجمه: الله غوره کوی را لیږلی شوي له فرښتو او له خلکو نه.

او دا د دغه ټولو ملتونو د پیروانو لخوا مسلمانان یهودیان او نصرانیان شول، په اتفاقي توګه یو منلی شوی حقیقت دی، ځکه دوی کرد د الله او بنده ترمنځ د الله له طرفه د حکم او خبر رسولو په برخه کښي د واسطو په ثبوت باندي چي هغه واسطي د انبیاؤ علیهم السلام څخه عبارت دی قائل دي.

پس د دغه واسطو څخه چي څوک منکر شي هغه د دغه ټولو ملتونو او د یانو د پیروانو په نزد په اتفاق سره کافر دی.

هغه سورتونه چي الله پاک په مکه مکرمه کښي نازل کړي دی، لکه سورة انعام، اعراف او د «الر» او «حم» او «طس»، والا سورتونه، او دی په شان نور سورتونه شو، په د غوکښي د هغه مضامینو بیان دی کوم چي د دین اصول او بنسټونه دی لکه

---
(۱) سورة حج: ۷۵ -

په الله او رسول الله او په ورځ د آخرت باندی ایمان لرل شو -

الله تعالیٰ د خپلو پیغمبرانو سره د نصرت او کومک کولو قیصې او د غه رازیې د کافرانو د هلاکت د څرنګوالی قیصې چې پیغمبران یې د روغ ژن کښلی وو بیان کړی دی او فرمایلې دی:

(وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِينَ۔ إِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنْصُورُونَ ۔ وَإِنَّ جُنْدَنَا لَهُمُ الْغٰلِبُونَ) (۱)

ترجمه: او بیشکه مخکښی صادره شوې ده وعده زموږ د پاره د رالیږل شویو بندګانو خوږو، چې بیشکه پیغمبران هم دوی ته به مدد ورکولی شي، او بیشکه لښکری زموږ خامخا هم دوی غالبه ربیالی، دی (په کافرانو)

## هم دغه رنګ الله تعالیٰ فرمایلی دی:

(إِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِينَ آمَنُوا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُومُ الْأَشْهَادُ) (۲)

ترجمه: بیشکه چې موږ خامخا مدد کوو له خپلو رسولانو سره او مدد کوو له هغو کسانو سره چې ایمان یې راوړی دی په ژوند د دنیا کښی او په هغه ورځ چې قائم به شي او به درېږی، شاهدان (له ملائکو، انبیاؤ، او مؤمنانو)

---

(۱) سورة صٰفّٰت: ۱۷۱-۱۷۳ - (۲) سورة مؤمن ۵۱ -

پر منکرانو باندی۔

او پیغمبران هغه ډول واسطې دي چې د دوی اطاعت، پیروي او تابعداري حتمي او ضروري ده لکه چې الله تعالیٰ فرمایلي دي:

(وَمَا اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا لِيُطَاعَ بِاِذْنِ اللهِ)[1]

ترجمه: او مونږ نه دي لیږلی هیڅ رسول مګر لیکلی مو دی، د دې لپاره چې د ده حکم دې او منلی شي د الله په حکم سره۔

او همدارنګه الله تعالیٰ فرمایلي دي:

(قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ يُحْبِبْكُمُ اللهُ) (۲)

ترجمه: وو وایه ای محمده! دوی ته، که چیرې یئ تاسې چې محبت کوئ له الله سره نو زما تابعداري وکړئ، نو محبت به وکړي الله پاک له تاسو سره۔

همدغه ډول الله تعالیٰ فرمایلي دي:

(فَالَّذِيْنَ آمَنُوْا بِهٖ وَعَزَّرُوْهُ وَنَصَرُوْهُ وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ مَعَهٗٓ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ـ) (۳)

---

(۱) نساء: ۶۴-(۲) آل عمران: ۳۱-(۳) اعراف: ۱۵۷

ترجمه: پس هغه کسان چې ایمان یې راوړی په ده (محمد) او تعظیم یې وکړو ده او مدد یې وکړو ده او پیروي یې وکړه د هغه نور (رڼا) چې نازل کړی شوی ده د ده سره، د غه ستایلي شوي کسان هم دوی خلاصي موندونکي دي -

## او د قران کریم په بل آیت کښې الله تعالی فرمايي:

(لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللهَ وَ الْيَوْمَ الْآخِرَ وَ ذَكَرَ اللهَ كَثِيرًا) (۱)

ترجمه: بیشکه ده تاسو لره په (کارد، رسول الله کښې پیروي نیکه د هغه چا له پاره چې امید لري د ثواب الله او امید لري د ثواب او نعمتونو د روستنۍ ورځې (قیامت) او یادوي الله لره ډیر -

## غَیرِ مَشرُوع وَاسطه

که د واسطې څخه یې مقصد داوی چې د بنده له پاره حتما داسې واسطې ته ضرورت دی چې ورله په جلب منافع کښې او دفع د اضرارو کښې واسطه او مرستندوی وکرځي او بنده د غه واسطې ته د مثال په توګه د روزۍ د نصرت

(۱) سورة احزاب: ۲۱ -

او هدایت غوښتلو په برخه کښې رجوع کونکی او وسی او د حاجت سرکولو په امید ترینه دخپلو حاجتو نو د پوره کولو سوال وکړی، نو دا هغه عظیم او خطرناک قسم شرك دی چې الله پاك د هم د غه شرك په اساس مشرکان کافران بللی دی ځکه چې دوی او الله تعالیٰ نه په غیر بل څوك متصرفین او سفارشیان نیولی وُ او هغوی یې د نفع او نقصان، مالکان ګڼل او حال دا چې سفارش د الله تعالیٰ د اذن او اجازی پوری اړه لری، الله پاك په دی باره کښې داسې فرمایلی دی:

(اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَیْنَهُمَا فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰی عَلَی الْعَرْشِ مَا لَکُمْ مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّلِیٍّ وَّلَا شَفِیْعٍ اَفَلَا تَتَذَکَّرُوْنَ) (۱)

ترجمه: الله هغه ذات دی چې پیدا یې کړل اسمانونه او ځمکه او هغه څه چې په منځ د دی دواړو کښې دی په شپږ و ورځو کښې بیا استوی وکړه ده په عرش باندې نشته دی تاسو لره بې له ده نه بل څوك دوست او سفارش کونکی، ایا پند نه قبلوئ تاسو؟.

دا رنګه الله تعالیٰ فرمایلی دی:

---

(۱) سورة السجدة: ۴.

(وَاَنْذِرْ بِهِ الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ اَنْ يُّحْشَرُوْا
اِلٰى رَبِّهِمْ لَيْسَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ وَلِيٌّ وَّلَا
شَفِيْعٌ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ-) (۱)

ترجمه: او ويره وه په دې قرآن سره هغو کسانو لره چې ويريږي له دينه چې جمع به کړی شي دوی خپل پرور دګار ته، نه به وي دوی لره سوا د الله تعالی نه دوست، نه کومکی او نه سفارشی (شفاعت کونکی) د دې له پاره چې دوی پرهيزګاري وکړي.

## فرښتو او انبياؤ سره د تکليف لرې کولو واک نشته.

په دې هکله الله تعالی فرمايي:

(قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ
فَلَا يَمْلِكُوْنَ كَشْفَ الضُّرِّ عَنْكُمْ وَلَا تَحْوِيْلًا
اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ يَبْتَغُوْنَ اِلٰى رَبِّهِمُ
الْوَسِيْلَةَ اَيُّهُمْ اَقْرَبُ وَيَرْجُوْنَ رَحْمَتَهٗ
وَيَخَافُوْنَ عَذَابَهٗ اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ
مَحْذُوْرًا-) (۲)

ترجمه: ووايه (ای محمده!) دوی ته چې را وبلئ تاسو هغه کسان چې تاسو ورباندې سوا د الله نه د مدد ګار انو ګمان کوئ پس هغوی اختيار نه لري د تکليف لرې

---

(۱) انعام: ۵۱ - (۲) الاسراء: ۵۶، ۵۷ -

کولو تاسو نه، او نه د اسانه ولو او بدله ولو اختیار لری - هغه کسان چې د وی یې عبادت کوی (رامن د شه ورنه وایې)، په ځنیله ځغوی ځپلرب ته نژدې والی لټوی چې کوم یو به له دوی نه ډیر نژدې وی (الله ته)، او امید لری دوی د رحمت د هغه (الله)، او ویریږی د عذاب د هغه نه یقینا ستاد رب له عذابه ویره کیدای شي.

## هم دغه راز الله تعالیٰ فرمایلي دي:

(قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ لَا يَمْلِكُوْنَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي الْاَرْضِ وَمَا لَهُمْ فِيْهِمَا مِنْ شِرْكٍ وَّمَا لَهٗ مِنْهُمْ مِّنْ ظَهِيْرٍ، وَلَا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ عِنْدَهٗٓ اِلَّا لِمَنْ اَذِنَ لَهٗ) الآیه - (۱)

ترجمه: و د ایه (دو یته ای محمده!) و بولئ تاسو هغه معبودان چې گمان به کاوه تاسو په دوی باندې د آلهه وُ، په غیر د الله نه چې دوی اختیار نه لری د یوی ذری په اندازه، نه په اسمانونو کښې او نه په ځمکه کښې او نشته دی هیڅ حصه او شراکت ددوی د غو معبودانو لره په آسمان او ځمکه کښې (پورته او ښکته)، او نشته دی د غه الله لره د دوی نه هیڅوک

---

(۱) سورة سبا: ۲۲، ۲۳ -

مددګار، اوکېږه نه رسوي شفاعت او سفارښت په نزد دالله، مګر شفاعت د هغه چا چې اجازه ورکړي الله هغه ته، یا د هغه چا لپاره چې د هغه په حق کښې د شفاعت کولو اجازت وشي.

د سلفو یوې ډلې ویلي دي: ځنې قومونه وو چې هغوی به د ځپلو حاجتو نو د سرکولو له پاره عیسی علیه السلام اوعزیر علیه السلام او فرښتې بللې، نو الله پاک دوی ته د دې حقیقت ښکاره کړو او ونه ووکړه چې فرښتې او انبیاء نه د دوی نه د تکلیف لرې کولو واک لري، او نه د دوی نه د تکلیف د بدله ولو اختیار لري، بلکښې هغوی په ځپله الله پاک ته د نژدې کېدو او تقرب هڅه کوي او د الله تعالی د رحمت حاصله ولو په امید دي، او د هغه د عذاب نه په ویره کښې دي.

## په الوهیت سره د فرښتو او انبیاؤ نیول کفر دی، الله تعالی فرمایلي دي:-

(مَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّؤْتِيَهُ اللّٰهُ الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ
وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُوْلَ لِلنَّاسِ كُوْنُوْا عِبَادًا لِّيْ
مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ كُوْنُوْا رَبّٰنِيّٖنَ بِمَا كُنْتُمْ
تُعَلِّمُوْنَ الْكِتٰبَ وَبِمَا كُنْتُمْ تَدْرُسُوْنَ، وَلَا
يَاْمُرَكُمْ اَنْ تَتَّخِذُوا الْمَلٰٓئِكَةَ وَالنَّبِيّٖنَ اَرْبَابًا

اَيَاْمُرُكُمْ بِالْكُفْرِ بَعْدَ اِذْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ (۱)

ترجمه: مناسب نه دی هیڅ بشر لره چې و د کړی الله پاک هغه ته کتاب او پوهه په دین او پیغمبری او بیا دوا یې خلقو ته چې تاسی زما بندګان (عبادت کونکی) شئ بې له الله څخه، لیکن (داسې کس وایې) شئ تاسو الله والا خلق (عالمان عاملان) په سبب د دی چې ښودنه کوئ د الله د کتاب، او په سبب د دې چې تاسو زده کوئ کتاب، او امر نه کوی تاسو ته (پیغمبر) چې ونیسئ تاسو پرښتې او پیغمبران حقدار د بندګی، آیا حکم به کوی تاسو ته په کفر سره پس له هغې چې تاسی مسلمانان شوی یئ.

الله پاک په دی مبارکو آیتونو کښې داخبره روښانه کړه ملائکې او انبیاء د بندګۍ او عبادت حقدار ګڼل کفر دی پس څوک چې پرښتې او پیغمبران په داسې توګه واسطې نیسي چې د مصیبتونو د لرې کولو په وخت کښې ورته د رامد د شه آوازونه کوی، په دې باندې کوی (مافوق الاسباب تربېنه)، د ګټو د لاسته راوړلو او ضرر دفع کولو غوښتنه کوی، له دوی نه د ګناه د مغفرت، د زړه له پاره د هدایت، او د غه راز د مشکلاتو د حل او د روزۍ د پراخ والي په برخه کښې

(۱) سورة آل عمران: ۷۹، ۸۰

سوال کوی نو د غه شخص د ټولو مسلمانانو په اتفاق سره کافر ګڼل کیږی. (۱)

## علماء د رَسُول الله صَلی الله عَلیه وَسَلم او امت ترمنځ یې یَواځې دَاسلام دَ تبلیغ په ساحه کښې واسطې دی.

که څوک د انبیاؤ نه رو سته دینی عالمان د رسول اکرم صَلی الله علیه وَسَلم او د ده د امت ترمنځ په دې شان د واسطو په توګه قبلوی چې عالمان د و یته دین رسوی، په دین یې پوهه وی، ادب ورته ور ښای

(۱) کله چې پرښتو او انبیاؤ په حق کښې دا عقیده سا تل چې د وی د عبادت حقدار دی کفر بلل کیږی، نو بیا د هغو کسانو د کفر په برخه کښې څه سوال پیدا کیږی چې هغوی د دې نه په غیر په مخلوق کښې نور کسان او کانی بوټی او داسې نور شیان د الله تعالی سره د الله په صفاتو کښې شریک او د عبادت مستحق بولي - او چې کله پیغمبران د اسې وی نه پرته او ملائکې د الله د حکم او ورکړې شوی صلاحیت څخه سوا د خیر او شر رسولو په برخه کښې د ځان او بل له پاره اختیار نه لری او د الله په حضور کښې خپلې بې وسۍ څرګندو نه کوی او د عبادت نه یې سر غړونه د ځان لپاره جرم ګڼی نو بل به څوک وی چې هغه به د الله پاک په صفاتو کښې د الله سره برخه وال وی او یا به د اختیار خاوند وی. په قرآن کریم په دې اړه زښته زیات آیتونه وجود لری. (ژباړن)

او معتقدی په صفت د هغوی د خبر و پیروی کیږی، نو دا خبره یې درسته او پرځای ده ځکه د غه کسان د دینی علوم پوهان چې کله په یوه مسئله باندې را جمع شی او اتفاق وکړی، نو اجماع یې په قطعی او یقینی توګه حجت ده ځکه چې د دوی ټول په اجتماعی ډول سره په ضلالت باندې نه غونډیږی».

او که چیرته د دوی ترمنځ په کوم شی کښې اختلاف ولیدل شی نو حکم یې د الله تعالی په کتاب (قرآن مجید) کښې او د رسول الله صلی الله علیه وَسَلم په احادیثو کښې لټول پکار دی چې هغې ته یې راجع کړی ځکه چې یو یې په یوا ځې ځان په مطلق ډول سره معصوم نه دی بلکښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پرته نور په ټولو خلقو کښې د هرکس د کلام یعنی خبرو یوه برخه یې د منلو وړ یې، منل کیږی او یوه برخه یې د منلو وړ نه وی، پریښودل کیږی.

## د علماؤ د مقام په هکله رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

«العلماء ورثة الانبیاء، فان الانبیاء لم یورثوا دینارا ولا درهما وانما ورثوا العلم فمن اخذه فقد اخذ بحظ وافر» جزء من حدیث رواه ابوداؤد والترمذی بسند صحیح.

ترجمه: علماء د پیغمبرانو وارثان دي او شک نشته چې پیغمبرانو د ځانه ورسته دینار او درهم په میراث سره نه دي پرېښي بلکښې هغوئ په یقیني ډول سره پرېښې دي نو چا چې دغه علم واخست او زده یې نه کړ نو ده پوره برخه ترلاسه کړه. دا د هغه حدیث جز دی چې ابوداود او ترمذي په صحیح سند سره روایت کړي دي.

او څرنګه چې د مجازي پاچا وزیرانو او مرستیالانو په شان چې پاچا او رعیت په منځ کښې د وساطت دنده لري، د الله او مخلوق ترمنځ هم دغه ډول واسطې په دې شان سره ثابته وي چې دغه واسطې الله تعالی ته د مخلوق اړتیاوې وړاندې کوي او الله د دغو واسطو په وساطت او سفارش سره بندګانو ته لار ښودنه کوي او روزي ورکوي، پس په دې اساس مخلوق خپلې غوښتنې هغوی ته (واسطوته) وړاندې کوي، او هغوی په دې باره کښې بیا د الله تعالی څخه سوال کوي او مثال یې داسې دی لکه څنګه چې د پاچایانو په وړاندې واسطې قرار لري چې دغه واسطې په دې خاطر چې له نورو خلقو په نسبت د پاچایانو په نزد دَ اعتبار له پلوه ځانګړې مرتبې لري. نو دوی دَ اولس یعنې رعیت اړتیاوې هم پاچایانو ته په

ګوته کوی او هم یې د پوره کولو مطالبه او غوښتنه کوی، او عام خلق یعنی اولس خپلې مطالبې د غو واسطو (وزیرانو او مرستیالانو) ته وړاندې کوی، او داله دې امله چې د پاچا نه مستقیما نیغ په نیغه، سوال کول ورته یا بې ادبي معلومیږي، او یا دا چې په مستقیمه توګه د حاجت منولنو د پاچا نه په غوښتنه کښې ورته واسطو ته په مراجعه کولو کښې یا ته فائده وي ځکه دغه واسطې (مشیران، وزیران او مرستیالان) دحاجت منو په پرتله سره د پاچا په نزد خاص او نژدې مقام لري.

پس هغه څوک چې په دغه ترتیب سره د واسطو په ثبوت باندې عقیده لري، نو هغه کافر او مشرک دی، او واجب دي چې د توبې ویستلو غوښتنه تر بینه وشي که توبه یې ویستله ښه ده، او که توبه یې ونه ویستله نو قتل یعنی وژلی شي.

او دا هغه کسان دي چې خالق یې د مخلوق تشبیه کړی دی او الله (ج) سره یې شریکان پیدا کړي دي؛ او په قرآن کریم کښې په دغو کسانو باندې رد کول په دومره ز یاته اندازه سره لیدل کیږي چې په دغه فتوی کښې ځای کیدلی نه شي.

## دخلکواو پاچایانو ترمنځ واسطې د دې پدوله دی.

د پاچایانو او خلکو ترمنځ چې کومې واسطې قرار لري د هغې درې وجې دي:

لومړۍ وجه دا ده چې دغه واسطې پاچا ته د خلکو د حال احوال څخه کوم چې پاچا ته په هغې باندې علم نه وي خبر ورکوي، نو که څوک وایي چې الله (ج) د بندګانو په احوال باندې نه خبريږي مګر هله خبر شي چې ځینې ملائکې او انبياء او یا نور څوک ورته د بندګانو د حال څخه اطلاع ورکړي، نو دا سړی کافر دی. ځکه چې الله پاک په پټو یعنې په ورو او ډیر پټو خبرو باندې پوهیږي، او هغه څه چې په ځمکه او آسمان کښې پټ دي د الله پاک د علم څخه خارج نه دي (وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ) دا الله ښه آوريدونکی او ښه ليدونکی دی (الله) په مختلفو ژبو سره د بيلا بيلو حاجتونو د غوښتلو په برخه کښې ناري او فريادونه آوري، او د يو آواز اوريدل، دی د بل آواز د اوريدلو څخه نه منع کوي، دغه راز دی په کثرت د سوالونو سره غلطيږي نه، او د غوښتونکو په غوښتنه سره خفه کيږي نه.

دويمه وجه دا ده چې پاچا د معاونينو (مرستيالانو) د مرستې نه پرته، نه د ملت د چارو ته بيرکولې شي او نه د دښمنانو په مقابل کښې د دفاع کولې شي نو حتما

ورته د معاونینو او مرستیالانو د نیولو ضرورت وی
ځکه چې دی بې وسی او کمزوری دی او الله جلّ جلاله د د غه
ناقصو صفتونو څخه پاك دی د چاکومك او مرستې احتیاج
نه لری؛ الله تعالیٰ فرمایلی دی؛

(قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ
لَا يَمْلِكُوْنَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَلَا فِي
الْاَرْضِ وَمَا لَهُمْ فِيْهِمَا مِنْ شِرْكٍ وَّمَا لَهٗ
مِنْهُمْ مِّنْ ظَهِيْرٍ-) (۱) ترجمه یوځل مخکینی شوی
ده و دی کتل شی.

د غه ډول الله تعالیٰ فرمایلی دی:

(وَقُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَّ
لَمْ يَكُنْ لَّهٗ شَرِيْكٌ فِي الْمُلْكِ وَلَمْ يَكُنْ
لَّهٗ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ وَكَبِّرْهُ تَكْبِيْرًا-) (۲)

ترجمه: وو ایه ټوله ستاینه الله تعالیٰ لره ده هغه ذات
لره ده چې نه یې ولد نیولی دی او نه ورسره څوك په
بادشاهیٔ کښې شریك شته دی، او نه ور لره څوك
مددګار شته د بې وسیٔ له وجې نه لکه چې رکتاب بیان
وایی) او په لویی سره یا د کړه الله لره (هر وخت)
په لویی کامله سره.

---

(۱) سبا: ۲۲- (۲) سورة بنی اسرائیل: ۱۱۱-

رشاه صاحب په موضح القرآن کښې لیکي: په الله بانډې بې وسې یعنې چرته راځئ نه چې څه کار ته یې ضرور پیښ شي، ژبارن



د اسبابو په عالم کښې چې څه موجودات دی الله د هغو ټولو خالق، پالونکی او مالک دی او هیڅ چا ته احتیاج نه لري غني او بې پروا دی، او د الله تعالیٰ نه ماسوا چې هرڅوک دی هغوی ټول الله پاک ته محتاج دی.

اما کوم چې پاچایان دی هغوی د خپلو مرستیالا نو معاونت ته احتیاج او اړتیا لري بلکښې حقیقت دا دی چې د دی په بادشاهۍ کښې د هغوی سره برخه وال دی (والله رج) یودی د ه سره هیڅوک په سلطنت (واکمنی) کښې شریک نشته لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَاشَرِیْکَ لَهٗ لَهُ الْمُلْکُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَعَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ۔

در یمه وجه دا ده چې پاچا تر هغه وخت پورې چې د بل چا له پلوه تشویق نه شي د ه سره د ملت په حق کښې د فائدې، احسان او شفقت کولو قصد نه پیدا کیږي نو کله چې پاچا په دې ارتباط یا د خپلو ناصحینو (مشاورینو) له خوا چې د پاچا د محبوبیت خیال ور سره وی مخاطب شي او باورنه په دی مورد کښې به داسې توکه د یو چا له خوا مشوره ور کړل شي چې د پاچا سره هم امید پیدا شي، او هم ور سره خوف (ویره) پیدا شي، نو بیا د غه وخت

د پاچا په عزم او ایراده کښې د ملت دارتیاوُ د رفع کولو په باب چمتو والی رامنځ ته شی، او دا یا له دی امله چې د ناصح او مشیر سپارښت د ده په زړه باندی اثر اغیزه، کړی دی، او یا داچې د مشوره ورکونکی د و بیانتن تاثیر لاندی کومی چې تشویق او تخویف د دواړه افاده کولاغلی دی.

اما الله تعالیٰ ذکر د واشیاوُ رب او مالك دی، او موږ چې څومره په خپل اولاد باندې ترحم لری الله پاك د دې هم زیات په خپلو بنده ګانو باندی مهربان دی! -

دغه ډول د ټولو اشیاوُ خلقت دالله پاك دارادی پوری اړه لری که الله پاك دکوم شیز د پیدا کیدو اراده کړی وی نو هغه په وجود کښی راځی او که الله تعالیٰ یی اراده نه وی کړی نو د هغه وجود بیا امکان نه لری.

او د ده (الله) چې کله د ځینو بنده ګانو له پاره دکټو ترتیب د ځینو نورو کسانو پورې مربوط ګرځولی وی نو بیا دغه کسان د هغوی سره مرسته پیل کړی، دعا کول ورته شروع کړی او یه دې برخه کښې ور له په سفارش بنا وکړی او دغسی د دی نور امثال هم واخله، پس دا الله تعالیٰ هغه ذات دی چې د دغه ټولو شیانو خالق دی، او دا هغه ذات دی چې دا حسان کونکی د عاګوی او سفارش والا په زړه کښی یی د دعا، سفارش اونیکی کولو اراده پیدا کړی ده.

او د دې امکان هم نشته چې داسې څوك دې موجود وسي چې هغه دې الله (ج) لره د خپلې ارادې پرخلاف باندې مجبور کړي او يا دې هغه الله پاك ته په هغه باندې خبرورکړي چې الله پاك په هغې باندې (العياذ بالله) علم نه درلوده، او داسې څوك هم نشته چې هغه الله پاك لره د اُميد او ويرې ورکولو سبب وګرځي او هم د غه وجه ده چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي:

لا يقولنّ احدكم اللّهم اغفرلي ان شئت...الخ يعنې ستا سو څخه يوکس دې داسې نه وايي چې: اې الله! که ستا خوښه وي نو بخښنه راته وکړه، اې الله! که ستا خوښه وي را باندې ورحميږه. بلکښې په يقين سره دې سوال کوي ځکه چې الله پاك مختار دې څوك يې مجبوره دې نشي.

## شفاعت د الله پاك د اذن پورې اړه لري

سفارشيان به د الله تعالی په حضور کښې د هغه د اجازې نه پرته لکه چې الله (ج) فرمايي سفارش نه شي کولی (مَنْ ذَا الَّذِیْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗ اِلَّا بِاِذْنِهٖ.) (۱) څوك دې هغه کس چې سفارش به وکړي په نزد د ده مګر په اجازت د ده - او الله پاك فرمايلي دي:

---

(۱) سورة بقره: ۲۵۵

(قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ.... الآية (۱)
همدارنګه الله تعالیٰ فرمایلي دي: (وَلَا يَشْفَعُوْنَ
اِلَّا لِمَنِ ارْتَضٰى) (۲) شفاعت به نه کوي مګر د هغه چا له
پاره چې الله پرې راضي شوی وي. پس دا خبره یې په
ډاګه کړه چې هرهغه څوک چې په غیر دالله (ج) څخه
بللي شي، هغه نه واکمن دي او نه ورلره دالله په
واکمنۍ کښې برخه شته او نه دي دالله لپاره معاون دي
او شته نشته چې سفارش یې دالله دا ذات پرته کټه ته
شي رسولی.

اما پاچایان داسې نه دي، ځکه د پاچایانو په حضور
کښې سفارش کونکي کله د قدرت خاوندان وي، کله ریلیاً
سره په سلطنت یعنې واکمنۍ کښې شریکان وي او کله د
پاچایانو سره په دولتي چار وکښې مرستیالان او کومکیان
وي. نو دغه کسان او د دوی نه علاوه نور کسان
پرته له دې چې د پاچا څخه اجازه واخلي د پاچا په وړاندې
سفارش کوي او د پاچا له خوا یې سفارش منل کیږي
او دا کله له دې امله چې پاچا ورته احتیاج لري، او کله
له دې وجې نه چې پاچا ترسینه ویره حس کوي، او کله
یې ورله د هغه احسان او انعام په مقابل کښې د بدلې
او مکافات په توګه قبول چې د دوی د پاچا سره کړې وي

(۱) سورة سبا: ۲۲-۲۳ (۲) سورة انبیاء: ۲۸.

بناءً دی د خپلی نبعُی او خُوئ سفارش له دی دجی نه قبلوی چی دی خپلی او نبعُی خُوئ ته احتیاج لری ځکه د خُوی او نبعُی مخالفت یی ارو مرو په ضرور تمامیږی، د غه راز دی د خپل نوکر سفارش هم نه ردکوی، ځکه که ردکوی یی نو دکښه داویره پیداکیږی چی یا یه یی د امر ځمنه سرغړه و نه وکړی، او یا به ده ته په زیان رسولو کښی کوښښ وکړی

د بنده که کا نو ټول خپل منځی سفارشات په همدی ترتیب سره صورت مومی، پس هیڅ یوکس د بل چا سفارش نه قبلوی مګرله دی امله یی قبلوی چی یا یی ترینه تمه کیږی او یا یی ترینه ویره کیږی. او الله تعالی هیڅ چا ته تمه نه لری، د هیڅ چا نه ویریږی نه، او هیڅ چا ته احتیاج نه لری، بلکښی هغه غنی ذات دی، او فرمایلی یی دی:

(اَلَآ اِنَّ لِلّٰهِ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ وَمَا يَتَّبِعُ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ شُرَكَاۗءَ اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَخْرُصُوْنَ - قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ هُوَ الْغَنِيُّ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ (۱)

ترجمه: خبردار یقینا د الله تعالی په اختیارکښی دی هغه څوک چی په اسمانونو کښی دی، او هغه څوک چی په ځمکه کښی دی. او تابعداری نه کوی هغه کسان چی په غیر

---

(۱) سورة یونس: ۶۶ - ۶۸

دالله نه شریکانولره بولې، اوتابعداری نه کوی دوی مګرد کمان، اونه دی دوی مګرد زوغږن، ا تکل کارونه کوی ... وایی دوی نیولی دی الله تعالی ولد، نازولی، پاك دی الله تعالی، دی بې نیازه دی، خاص ده لره دی هغه څه چې په آسمانونو کښې دی او هغه څه چې په ځمکه کښې دی.

ا دمشرکانو چې کوم سفارشیان نیولی دی دوی د هم دغو مشرکانوله خوا سفارشیان کښل کیږی، الله تعالی فرمایلی دی:

(وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَٰؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللَّهِ قُلْ أَتُنَبِّئُونَ اللَّهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ) - (۱)

ترجمه: او بندګی کوی دا خلق په غیرالله نه د هغه چا چې نه ضرر رسولی شی دوی ته او نه نفع رسولی شی دوی ته، او وایي دوی چې داکسان سفارشیان زمونږ دی د الله تعالی په دربار کښې، دوی ته نه آیا تاسو خبروركوئ الله تعالی ته د هغه څه چې نه دی پوهه په هغې باندې په آسمانونو کښې اونه په زمکه کښې (یعنی داسی شی هیڅ نشته)، پاك دی الله تعالی او ډیرلوی دی له هغو اشیاؤ څخه چې دوی یې شریکوی د الله (ج) سره. او هم دا دنګه الله تع

---

(۱) سورة یونس: ۱۸

فرمایلی دی:

(فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ قُرْبَانًا اٰلِهَةً ؕ بَلْ ضَلُّوْا عَنْهُمْ وَذٰلِكَ اِفْكُهُمْ وَمَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ.) (۱)

ترجمه: پس ولې مرسته و نه کړه له دوی سره هغو چې نیولي وو دوی هغوی لره معبودان بې له الله نه د پاره د نژدېوالي الله ته بلکېنې ورک شول (دغه بې) په وخت کښې له دوی څخه او همدا دی د دروغ ددوی او هغه څه چې تړی یې دوی پر الله.

آو د مشرکانو د عقائدو نه د خبر ورکولو په لړکې یې داسې فرمایلي دی:

(مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَا اِلَى اللّٰهِ زُلْفٰى الآیه (۲)

ترجمه: او ویل دوی: عبادت نه کوو مونږ ددوی مګر ددی له پاره چې نژدی کړي دوی مونږ الله تعالی ته په مرتبه د قرب کښې.

دغه راز الله تعالی فرمایلي دی:

(وَلَا يَاْمُرَكُمْ اَنْ تَتَّخِذُوا الْمَلٰٓئِكَةَ وَالنَّبِيّٖنَ اَرْبَابًا.) الایة (۳)

**۲ او همدا رنګه یې فرمایلی دی:**

(قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ مِنْ دُوْنِهٖ

(۱) سورة احقاف: ۲۸ (۲) سورة زمر: ۳ (۳) ال عمران: ۸۰

فَلَا يَمْلِكُوْنَ كَشْفَ الضُّرِّ عَنْكُمْ وَلَا تَحْوِيْلًا۔ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ يَبْتَغُوْنَ اِلٰى رَبِّهِمُ الْوَسِيْلَةَ اَيُّهُمْ اَقْرَبُ وَيَرْجُوْنَ رَحْمَتَهٗ وَيَخَافُوْنَ عَذَابَهٗ اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُوْرًا۔ (۱)

مگر سفارش واله او دعا کونکی صرف هغه ډول سفارش او دعا کولې شی دکوم په باره کښې چې ورته اجازه شوی وی، پس دی هغه ډول شفاعت نه شی کولې دکوم څخه چې منع راغلی یی، لکه د مشرکانو په حق کښې سفارش کول او ورله بخښنه غوښتل شوُ الله تعالیٰ فرمایلی دي:

(مَاكَانَ لِلنَّبِيِّ وَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ وَلَوْ كَانُوْٓا اُولِيْ قُرْبٰى مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّهُمْ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ، وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ اِبْرٰهِيْمَ لِاَبِيْهِ اِلَّا عَنْ مَّوْعِدَةٍ وَّعَدَهَا اِيَّاهُ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهٗٓ اَنَّهٗ عَدُوٌّ لِّلّٰهِ تَبَرَّاَ مِنْهُ اِنَّ اِبْرٰهِيْمَ لَاَوَّاهٌ حَلِيْمٌ-) (۲)

ترجمه: نه دی روا پیغمبر لره او نه مسلمانانو لره چې بخښنه وغواړی د مشرکانو له پاره اګرکه وی دوی خاوندان د خپلوۍ پس له هغې نه چې ښکاره شوه د وی ته چې دوی دوزخیان دی، او نه وه بخښنه غوښتل د ابراهیم (ع) د پلار

---

(۱) بنی اسرائیل: ۵۷ (۲) التوبة: ۱۱۲، ۱۱۳ -

پلار له مکر په سبب د وعدی وه چی کړی یی وه (پلار) هغه وعده د ده (ابراهیم) سره پس هر کله چی ښکاره شوه ابراهیم ته چی دی دښمن د الله دی نو بیزاره شو هغه نه بیشکه ابراهیم خامخا ډیر نرم زړی او صبرناک ؤ - او دغه ډول الله تعالی د منافقانو په هکله فرمایلی دی:

(سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ اَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ اَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ لَنْ يَغْفِرَ اللّٰهُ لَهُمْ) (۱)

ترجمه: برابره خبره ده په حق د دوی کښی که وو غواړی ته بخښنه د دوی له پاره او که یی و نه غواړی د دوی له پاره، هیڅ کله به و نه بخښی الله د وی لره.

او په صحیح حدیث کښی ثابته شوی ده چی الله پاک خپل پیغمبر د مشرکانو او منافقانو په حق کښی د بخښنی غوښتلو څخه منع کړی دی، او د دی خبری څخه یی خبر ور کړی دی چی دی (الله) د وی ته بخښنه نه کوی او د فرمایلی یی دی:

(اِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ) (۲)

ترجمه: یقینا الله پاک نه بخښی چی شرک او کړی شی د هغه سره، او بخښی هغه گناهونه چی کم دی د دینه هغه چالره چی اراده و فرمایی د مغفرت یی. د غه ډول پی

---

(۱) منافقون: ۶ (۲) سورة النسآء: ۴۸ -

فرمایلي دي:

﴿ وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ ۖ إِنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَمَاتُوا وَهُمْ فَاسِقُونَ ﴾ (۱)

ترجمه: او هیڅ کله مه کوه مونځ (د جنازې) په هیڅ تن له دغو (منافقانو) چې مړشي، او مه دریږه په قبر د ده (د دعا، استغفار، یا تدفین د اهتمام له پاره)، بیشکه دغه (منافقان) کافران شوي دي په الله تعالی او په رسول د هغه، او مړه شوي دي دوی په داسې حال کښې چې دوی نافرمان وو. همدا رنګه الله تعالی فرمایلي دي:

﴿ ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً ۚ إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ ﴾ (۲)

ترجمه: وبولئ تاسې خپل رب لره (هر وخت)، په زارئ عذر او په پټه سره بیشکه چې الله نه خوښوي تیریدونکي (له شرعي حدودو نه په دعا کښې)، او په دعا کښې د شرعي حدو د څخه تجاوز دا دی چې بنده د الله پاک څخه د هغه کار کول غواړي چې الله پاک هغه کار نه کوي د مثال په توګه دی نبي نه دی او د الله پاک څخه د پیغمبرۍ مقام غواړي، یا د مشرکانو له پاره د مغفرت سوال کوي او داسې نور شو او یا دا چې د الله پاک څخه د ګناه او د

(۱) سورة توبه: ۸۴ (۲) اعراف: ۵۵

معصیت سوال کوی لکه په کفر، فسق او نافرمانی کولو سره د الله (ج) نه د کومک غوښتنه کوی، پس سفارش کونکی هغه څوك دی چی الله پاك ورته د سفارش کولو اجازه کړی وی، او بیا دی هغه ته دل غوښتنه کولو شی په دغه غوښتنه (دعاء) کښی گناه نه وی، که چرته یوتن یی داسی څه وغواړی چی ورله مناسب نه وی نو بیا په هغی باندی ټینګار نه کوی لکه چی هغوی پسه هغی باندی د ټینګار کولو څخه لکه چی الله تعالی فرمایی معصوم ردی:

(إِنَّ ابْنِي مِنْ أَهْلِي وَإِنَّ وَعْدَكَ الْحَقُّ وَأَنْتَ أَحْكَمُ الْحَاكِمِينَ) (١)

ترجمه: بیشکه ځما ځوی زما د اهل څخه دی، او بې شکه وعده ستا سو حقه ده، او ته ډیر لوی حکم کونکی یی،

بیا الله پاك و فرمایل:

(یٰنُوحُ إِنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ إِنَّهُ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ فَلَا تَسْأَلْنِ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ إِنِّي أَعِظُكَ أَنْ تَكُونَ مِنَ الْجَاهِلِينَ. قَالَ رَبِّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَسْأَلَكَ مَا لَيْسَ لِي بِهِ عِلْمٌ وَإِلَّا تَغْفِرْ لِي وَتَرْحَمْنِي أَكُنْ مِنَ الْخَاسِرِينَ). (٢)

ترجمه: ای نوحه! یقینا دی ستا د اهل څخه نه دی

---

(١) سورة هود: ٤٥ (٢) هود: ٤٦، ٤٧

ځکه چې دی د داسې عمل والا دی چې نیټ نه دی؛ پس
دُعَا مه غواړه زمانه د هغه چا په باره کښې چې نشته
دی تا لره ده هغه (د ایمان) په باره کښې یقین بیشکه
زه پند درکوم تا ته چې (نه) شې ته له جاهلانو څخه
وویل ده: (نوح) ای ربه زما! یقینا زه پناه غواړم پتا
سره له دی چې سوال وکړم له تا نه د هغه چا په باره
کښې چې نشته ما لره د هغه په ایمان باندې یقین
او که ته بخښنه و نه کړې ماته او رحم و نه کړې په
ما باندې نو شم به زه له زیان کارانو نه۔
او هر سفارش کونکی، او دعا والا چې د الله پاک په
کوی د هغه سفارش
دربارکښې سوال او سفارش او دعا د الله تعالیٰ د قضا
قدر او مشیت پوری اړه لری پس د الله هغه ذات دی
چې قبلونکی د سفارش دی او اجابت کونکی د دعا دی
او هغه ذات دی چې د سبب او مسبب دواړو خالق دی
او د ادعا د هغو اسبابو د جملې څخه ده کوم چې د
الله تعالیٰ له طرفه مقدر شوی دی۔
پس کله چې حقیقت په دی ترتیب سره دی بیا نو
محض اسباب مؤثر کنړل بې له دی چې مؤثر حقیقی
ته یې نسبت وشی، شرک فی التوحید کنړل کیږی
او د سبب څخه په دی وجه کار نه اخستل چې په دې
برخه کښې یې سببیت تثبیت نه دی دا د عقل تنقیص

اونیمګړتیا وجه ده او په ګلی توګه د اسبابو څخه سترګی پټول چی هیڅ وجود نه لری داد شریعت بی اعتباره کول او ورباندی داغ لګول دی، بلکښی په بنده باندی دالازم دی چی دی به متوکل علی الله او سیږی او دده څخه به سوال او غوښتنه کوی او امید به ترینه ساتی او دا ځکه چی الله پاک دبنده دمشکل دحل له پاره دمخلوق دعا او ځنی نور شیان چی خوښ شوی اسباب مقرر کړی دی ۔

## دادی په حق کښی دا علیٰ له طرفه دُعا غوښتل او دغه راز بالعکس دواړه مشروع طریقی دی

دعا غوښتل یوه مشروع او جائزه طریقه ده چی لوړی مرتبی خاوندیی د ټیټی درجی د ښتن له پاره کولی شی او د ټیټی درجی والایی د لوړی درجی خاوند په برخه کښی کولی شی لکه چی دانبیاؤ علیهم السلام څخه به د شفاعت او دعا غوښتنه کیدله او دغه راز مسلمانانو داستسقاء یعنی دباران کیدلو په برخه کښی د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د سفارښت او دعا غوښتنه کړی وه (۱) او همدارنګه بیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه بعد عمر رضی الله عنه او نورو مسلمانانو په ګډه سره د

---

(۱) دادا علیٰ له طرفه دادنیٰ په حق کښی د دعا کولو مثالونه دی

استسقی په باره کښې د نبي علیه السلام تره عباس رضي الله عنه د دعا کولو له پاره غوره که او ورانديږي یې کړه -

د غه راز د ټول خلك به د قیامت په ورځ د انبیاوو علیهم السلام څخه د شفاعت غوښتنه کوي چې محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم په دوی کښې ډیر د سفارش کوونکو سرداردی، او دیو شمیر خاصو سفارشونو ویاړ هم د همده په برخه دی، اما د دې سره سره بیا هم په صحیحو کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه دا خبره ثابته ده چې ده فرمایلي دي: (۱)




«اذا سمعتم المؤذن فقولوا مثل ما یقول ثم صلوا علیّ فانه من صلی علیّ مرة صلی الله علیه عشرا ثمّ سلوا الله لی الوسیلة فانها درجة في الجنة لا تنبغي الا لعبد من عباد الله وأرجو ان اکون ذلك العبد فمن سأل الله لی الوسیلة حلت له شفاعتي یوم القیامة». (۲) یعنې کله

چې تاسې د مؤذن څخه اذان آوری نو تاسې ورسره هغه څه ووایاست چې هغه یې وایي (د اذان کلمات ورسره تکرار وئ)، او بیا وروسته پر ما باندې درود ووایاست څکه هغه

---

(۱) دا د لې لـه پلوه دا على درجې د غوښتنې لـه باره دعا غوښتلو مثالونه ذکر کیږي. - (ژباړن) -

(۲) دا یوا ځې مسلم روایت کړی دی -

څوک چې پر ما باندې یو وار درود وو وایي الله پاک په هغه باندې لس کرته درود وائي بیا ورپسې د الله تعالی څخه زماله پاره وسیله وغواړئ حکه د غه وسیله په جنت کښې یوه درجه ده چه د الله تعالی د بنده گانو څخه د یو بنده له پاره اختصاص شوي ده، او زه هیله کوم چې د غه بنده زه وو. و سم پس څوک چې زما لپاره دالله پاک څخه وسیله وغواړي نو د قیامت په ورځ زما د شفاعت له پاره مستحق وګرځیده.

د غه راز عمر رضی الله عنه چې کله د عمرې کولو لپاره تللو او رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته په محنه بنه ویله نو عمر رضی الله عنه ته یې و فرمایل: ( یَا اَخِي لاَ تنسنی مِنْ دُعَائِكَ ) (۱) اى رورره که! ما په د عاکښې له یاده مه او باسه.

پس نبي علیه السلام د خپل امت څخه غوښتي دي چې د ده له پاره دعا وغواړي، لیکن د غه غوښتنه د دې جملې څخه نه ده چې دې کښې د خپلوامتیانو څخه سوال کړی بلکښې دی دوی ته په دې باندې داسې امر کوی لکه څرنګه چې دی ورته د نورو نیکو اعمالو په باره کښې په کو موچې ثواب حاصلیږي، امر کوي، د رسول الله صلی

---

(۱) د دې حدیث په سند کښې عاصم بن عبد الله دی او هغه ضعیف دی.

الله علیه وسلم له پاره د خپلو امتیانو په ټولو اعمالو کښې چې د دوی له خوا ترسره کیږی د دوی په شان اجر ئ ځکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه ثابته ده چې ده فرمایلی دی: مَنْ دَعَا اِلیٰ هُدیٰ ..... الخ

یعنی چا چې د نیکۍ په لوری بلنه ورکړه نو ده لپاره د هغو کسانو د ثواب په اندازه اجر دی چې د ده تابعداری وکړی بې له دی چې د دوی په اجر کښې څه کموالی راشی او څوک چې د ګمراهۍ په لوری بلنه ورکوی نو پر ده باندې به د هغه چا د ګناه په اندازه ګناه پیټی کیږی چې د ده پیروی کړی وی بې له دی چې د دوی د ګناهونو په بار کښې څه کموالی راشی.

پس په داسی حال کښې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د هر نیک عمل په لوری خپل امت ته بلنه ورکړې ده، نو د ده له پاره د دوی په ټولو هغو اعمالو کښې چې په هغې کښې د ده تابعداری کړې وی، د دوی په شان اجر دی.

دغه رنګ کله چې دوی په رسول اکرم صلی الله علیه وسلم باندې درود وائی، نو الله پاک په هر یو هغوی باندې لس ځلی درود وائی رحمت لیږی، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم له پاره د دوی د اجر په شان اجر حاصلیږی او دا څرګنده خبره ده چې الله پاک د رسول الله صلی الله علیه وسلم

په حق کښې د دوی د دعا اجابت کوي او شک نشته چې الله تعالیٰ د دغه دعا په واسطه سره دوی ته ثواب یعنې بدله ورکوي، او کومه فائده چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته رسیږي هغه د دغه دعا په واسطه سره د الله تعالیٰ د لوری نعمت کرمې.

## دُعا دَاعِيْ او مَدْعوُّله دُواړو ته کټه رسوي

د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه په صحیح حدیث کښې ثابته ده چې ده فرمایلي دي: داسې یو سړی نشته چې دی د خپل ورور له پاره په غیاب کښې دُعا کوي مگر دا چې الله پاک هغې له یوه فرښته مقرره وي چې هر واري دی د خپل ورور له پاره کومه دعا کوي نو د غه مقرره شوې فرښته وائي: آمین او ستا له پاره دي هم د و مره وي.

په یو بل حدیث کښې راغلي دي: ((اَسْرَعُ الدعآءِ دعوة غائبٌ لغائبٍ)) (۱) یعنې ډیره زیاته د قبول و دعا په غیاب کښې د یو چا له پاره دعا کول دي.

پس د بل له پاره په دعا غوښتلو سره داعي (دعا کوونکی) او مدعوُّله (د چا له پاره چې دعا غوښتل کیږي) د واړو

---

(۱) منذري، ذهبي، او څنو نورو حدیث پوهانو د غه حدیث ضعیف بللي دي.

ته ګټه رسیږي اګر چې دعا کوونکی په دې نیت کښې د هغه چا نه
چې دعاوې له غوښتل کیږي نیت هم وي، له دې امله
مؤمن چې کله د خپل ورور په حق کښې کومه دعا کوي نو
په هغې سره هم دده ته فائده حاصلیږي او هم پرې
هغه چا ته فائده رسیږي چې دعا ورله غوښتل کیږي۔

پس چا چې بل ته ووېل: زما له پاره دعا وکړه او په
سره یې خپل ځان او د عا کوونکی دواړو ته ګټه رسول
مقصد وُ، نو دې او هغه مسلمان ورور یې دواړه د نیکۍ او
تقوی په برخه کښې د یو بل مرستیالان وګرځیدل ځکه
دده خپل دعا کوونکی ورور د مطلوب په لورې وهڅاوه او د
هغه څه ترسره کولو ته یې متوجه که چې د دواړو له
پاره پکښې فائده او ګټه ده۔

پس غوښتونکی په دعا سره د داسې فعل چې دواړو
ته پکښې فائده وي د هغه چا په شان دی چې بل ته په
نیکۍ او تقوی سره امر کوي چې بیا مامور ته د دغه عمل
په انجامولو سره هم ثواب رسیږي او آمر ته هم د
د ثواب په اندازه ثواب حاصلیږي ځکه چې د دغه مامور یې
دې نیک عمل ته رابللی دی" او بالخصوص د هغو دعاګانو
په برخه کښې لکه چې الله تعالی فرمایلي دي" بنده ته مامور
ګرځولي شوي دي: (وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَ
الْمُؤْمِنَاتِ) (1)

(1) سورة محمد: 19

ترجمه: او بخښنه اوغواړه د ګناه خپلې او د پاره د مؤمنانو سړیو او مؤمناتو ښځو په دې کښې الله پاک په استغفار سره امر کړی دی او بیا یې فرمایلي دي:

وَلَوْ اَنَّهُمْ اِذْ ظَّلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ جَآءُوْكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللّٰهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُوْلُ لَوَجَدُوا اللّٰهَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا (۱) - ترجمه: او که چیرې دا ؤ له کوم وخت چې ظلم وکړ دوی په ځانونو خپلو داغلي وی تا ته پس بخښنه غوښتې وی دوی له الله څخه او بخښنه غوښتې وی پیغمبر د دوی له پاره نو خامخا به موندلې وو دوی الله تعالی لره ښه قبلونکی د توبې ډیر رحم والا.

په دې آیت کښې الله پاک دعا موخلقو د استغفار او د دوی په حق کښې یې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د استغفار دواړو ذکر کړی دی، او په هغه بل آیت کښې رسول الله صلی الله علیه ته د دعا امرشوی دی چې دعا د مؤمنانو سړیو. او مؤمناتو ښځو له پاره بخښنه او غواړه ولې دا خبره د یادونې وړ ده چې الله پاک مخلوق ته د دعا امر نه دی کړی چې دوی د ټول مخلوق له پاره دا سې شي سوال وکړي چې الله پاک مخلوق ته په هغې سره د سوال کولو امر نه وی کړی بلکښې الله پاک چې بنده ته د کوم شي امر کړی دی هغه فعل دی او که ترک دی تعمیلول یې د الله تعالی عبادت او طاعت دی

---

(۱) سورة النساء: ع ۲

او د فاعل په حق کښې د اصلاح، سعادت او دغه راز الله تعالیٰ ته د نږدې کېدو وسیله او سبب دی۔

پس کله چې دې دغه فعل ترسره کړي نو د الله پاک د لورې د لوی احسان او انعام (پیرزوینې) مستحق وګرځي او د ټولو نه ستر احسان چې الله پاک په بنده ګانو باندې د هغې پیرزوینه کړې ده هغه د ایمان د قبلولو په برخه کښې ورته هدایت او توفیق ورکول دي چې دغه ایمان د قول او عمل څخه عبارت دی او د طاعتونو او نیکیو په کولو سره زیات والی مومي، نو هر کله چې بنده د خیر کار رسیګ عمل وکړي، نو په ایمان کښې یې زیادت راشي او دا هغه حقیقي انعام دی د کوم یادونه چې د الله تعالیٰ په دې مبارک قول کښې شوې ده:-

(صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ -) (١)

ترجمه: لاره د هغو کسانو چې تا انعام کړی دی په هغوی باندې۔ او دا رنګه د الله تعالیٰ په دې قول کښې یادونه شوې ده:

(وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ) - (٢)

ترجمه: او هر څوک چې د الله او د الله د رسول ومني نو دغه کسان به (په جنت کښې) د هغو کسانو سره وي چې

---

(١) فاتحه: ٧ (٢) نساء: ٦٩

انعام کړي دی الله په عفوی باندی.

اما دا خبره چی د دنیا نعمتونه په ته له دین څخه نعمتونه دی او که نه دی، په دیکښی زمونږ د مسلك د علماوو او نورو علماوو د دوه مشهور قوله دی چی تحقیق له مخی د نیوی نعمتونه من وجه نعمتونه بلل کیږی اګرچی من وجه تامه نعمتونه نه شمیرل کیږی.

ولی دینی نعمتونه کوم چی حصول یې په کار دی دا هغه څه دی چی الله پاك یې په کولو سره امر کړی دی او د واجبو او مستحبو څخه عبارت دی، پس دا د خیر هغه امور دی چی طلب یې د مسلمانو په اتفاق سره ضروری خبره ده، او د اهل السنة والجماعة په نزد باندی اصلی او حقیقی نعمت دی، ځکه د دوی په نزد باندی الله هغه ذات دی چی بنده ته یې نعمت د نیك عمل په ترسره کولو سره حاصلیږی.

په دی ځای کښی مقصد دا دی چی الله پاك مخلوق ته لا د الله څخه د مخلوق په بر خه کښی اصوف د هغه څه په باره کښی د سوال کولو امر کړی دی چی په هغی کښی د مخلوق له پاره خیر او فائده وی چی هغه یا واجب دی یا مستحب دی ځکه چی الله تعالی مخلوق څخه د دینه پرته بل څه نه غواړی، پس بل چا ته په څنګه اختیار

ورکړی چې له دغه څخه دی دینه (واجبو او مستحبو نه) په غیر بل څه دغو ښتل شی! بلکښی الله تعالیٰ په بنده د ضرورت نه پغیر د بنده څخه د مال غوښتل هم حرام او ممنوع کړی شوی دی -

او س په دی لړکښی د دعا غوښتونکی نیت ته کتل پکاردی چې نیت یې څنګه دی، که مقصد یې په دعا سره مامور بالدعاء (دعاکونکی) ته او یادغان او دعاکونکی دواړو له پاره فائده رسول وُ، نو په دی سره د دعا غوښتونکی ته ثواب حاصلیږی، او که چیرته یواځې ځپل مطلب حاصلول یې مقصد وُ نو له دی چې مامور بالدعاء (دعاکونکی) ته یې گټه ورسیږی، نو دا یواځې د دغه د نفس تقاضا پوره کول دی او بس -

په دغه ډول سوال کولو سره الله پاک بیعی امر نه کوی، بلکښی د دغه راز سوال څخه یې نهی کړی ده ځکه چې دا د مخلوق په حق کښی داسی یو سوال دی چې د چا له پاره پکښی د مصلحت او ګټې د سولو کوم قصد نه دی شوی، او حال دا چې الله پاک مونږ ته امر کوی چې دغه ته راجع شو، بنده ګی یې وکړو او د بندګانو سره یې په نیکی او احسان کولو سره مشغول او وسو -

په دغه ډول سوال کښی د دغو مقاصدو څخه د یو قصد هم نه دی شوی نه پکښی الله تعالیٰ ته د راجع کیدو

دعا او صلوة قصد شوی دی او نه پکښی مخلوق سره احسان کول، لکه زکوٰة اداکول شو په نظر کښی نیول شوی دی.

اگرچی بنده د دغه ډول سوال په کولو سره ګناه کارېږی اما بیا هم مامور به، او ما یؤذن له فیه، یعنی هغه شی چی بنده ته یی د کولو امر شوی دی، او هغه شی چی بنده ته پکښی صرف اجازه حاصله ده یو شان نه دی بلکښی د واړه په ځینو منځ کښی یو د بل سره توفیر او فرق لری.

د مثال په توګه استرقاء، یا د دم اچولو غوښتنه شوه، ځکه د غه کار اگرچی جائز دی خو بیا هم رسول الله صلی الله علیه وسلم په یو حدیث کښی فرمایلی دی: آو یا زره کسان داسی دی چی بی له حساب څخه به جنت ته داخلیږی او هغه داخوك دی چی استرقاء یعنی د رقیی او دم طلب نه کوی رمقصد دادی چی، د دی د ضرورت په وخت کښی د رقیی د طلب څخه کوم چی صرف ما یؤذن له فیه دی او د رخصت په درجه کښی قرار لری د وسیلی په توګه استفاده نه کوی بلکښی د توکل څخه کوم چی اعلی او لوړه درجه مقام لری کار آخلی.

شیخ الاسلام ابن تیمیه رح وایی: د دی مسئلی په هکله مابل ځای کښی په تفصیل سره بحث کړی دی او په

دی ځای کښې مقصد دا دی چې هر څوک د الله او د الله د مخلوق ترمنځ داسې واسطې ثابته وی لکه څرنګه چې د مجازی پاچایانو او رعیت ترمنځ وجود لری، نو هغه د دغه عقیدی په لرلو سره د اسلام څخه خارجیږی او مشرک ګرځی، ځکه داد هغو مشرکانو عقائد وُ چاچې د بتانو عبادت او بندګی کوله او ویل به یې:

دا (بتان) دا نبیاوو او نیکانو بندګانو تصاویر او شکلونه دی او الله ته د تقرب حاصلولو له پاره زمونږ وسیلې دی!

همدارنګه دا هغه ډول شرک دی چې الله تعالیٰ د هغې په وجه په نصرانیانو باندې رد کړی دی او فرمایلی یې دی:

(( اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَالْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَآ اُمِرُوْٓا اِلَّا لِيَعْبُدُوْٓا اِلٰهًا وَّاحِدًا لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ سُبْحٰنَهٗ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ )) (۱)

ترجمه: اختیارمند جوړ کړی دی، دوی ملایان او پیران خپل دا حکامو (د حلالو او حرامو) په غیر د الله تعالیٰ نه، او مسیح څوی د مریم او حکم نه ؤ شوی دوی ته مګر د دې خبرې چې بندګی دی وکړی دوی خاص د معبود کاریو، نشته دی لائق او حقدار د بندګی په غیر له ده نه، پاک دی الله تعالیٰ د هغې نه چې دوی یې ورسره شریک ګرځوی.

---

(۱) سورة التوبة: ۳۱ -

دغه رازدالله تعالیٰ څخه په مستقیمه توګه د سوال کولو په برخه کښې الهٰی فرمان داسې راغلی دی:

(وَاِذَا سَاَلَكَ عِبَادِىْ عَنِّىْ فَاِنِّىْ قَرِيْبٌؕ اُجِيْبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ اِذَا دَعَانِ فَلْيَسْتَجِيْبُوْا لِىْ وَلْيُؤْمِنُوْا بِىْ لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُوْنَ.) (١)

ترجمه: او هرکله چې پوښتنه وکړي له تا څخه بندګان زماله حال زما څخه نو بیشکه زه نژدې یم قبلوم د عاد دعا کونکی کوم وخت چې دعوا ړی له ما څخه پس ودد منی حکمونه زما او ایمان دی راوړي پر ما یقین دی وکړي په قبول د دعا سره) بنایي چې دوی په سمه لاره محکم پاتی شي -

همداز نګه الله تعالیٰ فرمایلی دی.

(فَاِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ وَاِلٰى رَبِّكَ فَارْغَبْ - (٢)

ترجمه: پس کله چې فارغ شې (د تبلیغ یا لمانځه څخه) نو ځان ستړی کوه (په عبادت یا دعا کښې) او خپل رب ته رغبت او زاری کوه -

همدارنګه الله تعالیٰ فرمایي: (وَاِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فِى الْبَحْرِ ضَلَّ مَنْ تَدْعُوْنَ اِلَّآ اِيَّاهُ) (٣)

ترجمه: او کله چې تکلیف در سیږي تاسو ته په دریاب کښې نو هیر شي ستاسو نه هغه څوک چې تاسو یې په حاجتونو کښې په غیر د الله تعالیٰ نه را بولئ - او همدارنګه الله پاک

---

(١) بقره: ١٨٦ (٢) الم نشرح: ٧-٨ (٣) الاسراء: ٦٧

فرمايلي دي :
(اَمَّنْ يُّجِيْبُ الْمُضْطَرَّ اِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوْٓءَ
وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَآءَ الْاَرْضِ)-(١)
ترجمه: بلکښې هغه څوك (غوره دي)، چې تبلوى سوال
د عاجز (بيکس او ناقرار) کله چې وبولى دغه مضطر هغه ته
او لرې کوى سختي او گرځوي الله تاسو لره خليفه گان په
زمکه کښې.
دغه راز الله تعالیٰ فرمايلي دي :
يَسْئَلُهٗ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ كُلَّ يَوْمٍ
هُوَ فِيْ شَاْنٍ) (٢)
ترجمه: سوال کوى د الله تعالیٰ څخه هر هغه څوك چې
په آسمانونو او ځمکه کښې دي هره ورځ الله په يوبل شان
کښې دي.

## په الله باندې توکل او يوازې د الله تعالیٰ څخه ويره او اميد ساتل د توحيد څخه عبارت دي

شك نشته چې الله پاك د خپل مبارك کتاب په ذريعه سره
هم د شرك جرړې قطع کړې دي او همدې په دغه کتاب کښې
د توحيد د دغه رول پوره وضاحت او بيان کړې دي، او د ا
په دې خاطر چې هيڅ يوکس د الله تعالیٰ څخه پرته په بل

(١) نمل: ٦٢ . (٢) رحمٰن: ٢٩ .

هیڅچا باندې توکل وکړي، نه تر بنه امید وساتي او نه تر بنه
ویریږي، الله تعالی په دې هکله داسې فرمایلي دي:
(فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي
ثَمَنًا قَلِيلًا ط (١)

ترجمه: پس مه ویریږئ تاسو د خلقو نه او ویریږئ له ما څخه او مه اخلئ څما په آیاتونو باندې بدله لږه (دنیا)

همدا رنګه الله تعالی فرمایلي دي:
(إِنَّمَا ذَٰلِكُمُ الشَّيْطَانُ يُخَوِّفُ أَوْلِيَاءَهُ). یعنې دغه جاسوس یقیناچې شیطان دی تاسې د خپلو ملګرو څخه ویره وي. (فَلَا تَخَافُوهُمْ وَخَافُونِ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ) (٢)

پس مه ویریږئ له هغوی نه، او له ما نه ویریږئ که چیرې یئ تاسې مؤمنان. یا ځکه چې تاسو مؤمنان یئ.

همدا رنګه الله تعالی فرمایي:
(أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ قِيلَ لَهُمْ كُفُّوا أَيْدِيَكُمْ
وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ فَلَمَّا كُتِبَ
عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُمْ يَخْشَوْنَ
النَّاسَ كَخَشْيَةِ اللَّهِ أَوْ أَشَدَّ خَشْيَةً) - (٣)

ترجمه: آیا نه دې کتلي تا (نه دې رسیدلي تا ته حال د) هغو کسانو چې وو ویلي شوي دوی ته: بند کړئ تاسو لاسونه خپل او قائموئ یعنې سم اداکوئ لمونځ او ورکوئ تاسې زکوٰة

(١) مائده: ٤٤ - (٢) آل عمران: ١٧٥ - (٣) النساء: ٧٧

نو کله چې فرض کړي شو په دوی باندې جنګ، په دې وخت کښې
یوه پوله له دوی نه ویریدله له خلقونه په شان د ویرې
د دوی د الله نه، بلکښې ډیرز یات د ویرې له دغه نه.

دغه رسول الله پاک فرمایلی دی.

«انَّمَا يَعْمُرُ مَسٰجِدَ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ
الْاٰخِرِ وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ وَلَمْ يَخْشَ
اِلَّا اللّٰهَ»- (١)

ترجمه: بیشکه چې آبادوی مساجد یعنې جوماتونه د
الله تعالیٰ هغه څوک چې ایمان یې راوړی دی په الله او
په ورځ آخرت او سمونې اداء کړې دی لمونځ او ورکړي
یې دی زکوة او نه دی ویری د لی مګر د الله نه یعنې
په غیر د الله څخه د بل چانه نه دی ویریدلی.

پس دا خبره څرګندوه شوه چې اطاعت په د الله
او د الله د رسول دواړو کیږي، او ویره به یوازې د
یو الله څخه کیدای شي.

همدارنګه الله تعالیٰ فرمایلی دی:

«وَلَوْ اَنَّهُمْ رَضُوْا مَاۤ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ
وَقَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ سَيُؤْتِيْنَا اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ
وَرَسُوْلُهٗۤ اِنَّاۤ اِلَى اللّٰهِ رٰغِبُوْنَ» (٢) -

ترجمه: او که دوی خوښ شوي وای په هغه څه

---

(١) التوبة: ١٨ (٢) التوبة: ٥٩

چي ورکړی ؤ د دی ته الله تعالیٰ او رسول د هغه، او دوی ویلي وای چي کافی (بس) دی مونږ لره الله تعالیٰ زر دی چي را به کړي مونږ ته الله تعالیٰ د فضل خپل نه او رسول د دغه الله (له بل غنیمته) ـ

او د الله تعالیٰ د دی قول نظیر د الله پاک د غه مبارک قول دی چي فرمایي:

(اَلَّذِیْنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ اِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ اِیْمَانًا وَّ قَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ وَ نِعْمَ الْوَكِیْلُ۔ (۱)

ترجمه: دا هغه کسان دی چي وویلي دوی ته خلقو (جاسوس) یقینا خلقو یعني کافرانو را ټول کړی دی ستاسی د مقابلی له پاره ډیر لښکرونو د یریږئ له دوی نه پس دغه ویره لوړ یات کړه ایمان د دوی، او دویل دوی: بس دی مونږ لره الله تعالیٰ او ډیر ښه کارساز دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل امت ته د توحید چید دغه ښکلي په کامله توګه ثابت او روښانه که او د شرک ټول اسباب یی په خپل امت کښ محوه او نابود کړل او دا له دی امله چي د غه پوره توحید زمونږ د دی قول تثبیتونکی دی چي وایو ـ

(لا اله الا الله) نشته دی لائق د بندګی او عبادت

---

(۱) آل عمران: ۱۷۳ ـ

مګر یو الله دی یعنی د الله پاک نه په غیر بل څوک د عبادت او بنده ګی ورنه دی، ځکه (الله) هغه ذات دی چې زړونه ورته په کمال محبت، تعظیم، درنښت، احترام، امید او خوف سره تسکین له پاره پناه وروړی -

رسول الله صلی الله علیه وسلم په دی برخه کښی زښت زیات تاکید وکړ او حتی چې خپلو امتیانو ته یی وفرمایل: (لا تقولوا ما شاء الله وما شاء محمد) یعنی داسی مه وایئ که د الله خوښه وی او د محمد خوښه وی بلکښی داسی وو وایئ: ما شاء الله ثم شاء محمد) که د الله خوښه وی او بیا د محمد خوښه وی۔

یو ځل یو سړی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وویل: که د الله خوښه یی او ستا خوښه یی، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: (اجعلتنی لله ندا)، آیا زه دی لله شریک وګرځولم؟ داسی وو وایه: (ما شاء الله وحده)، که د یو الله خوښه وی- (۱)

---

(۱) په اوسنی وخت کښی د ډیرو زیاتو خلقو د خولو څخه په ناپوهی سره دغه ډول ناروا اقوال زیات راووځی او بیا خصوصًا په هغه وخت کښی چې تملق او غوړه مالی ورسره مل شی نو دوی خاوندانو او هغو کسانو ته چې ورته په مادی لحاظ سره اړتیا لری په خطاب کښی وایی: خدای او ته په دا کار کوی، په خدای او تا بانــدی دا کار شو، که د خدای او ستا خوښه وی، نو دا کار کیږی، په خدای

(پاتی ص ۷۱)

دغه راز رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی:

څوک چې لو یه (قسم) کوی نو هغه دی په الله سره قسم یادکړی او یا دا چې چُپ د دسی. همدارنګه یې فرمایلی دی: چاچې د الله پاک نه په غیر په بل څه باندی لویه وکړه نو هغه د شرک مرتکب وګرځیدٔ یعنی د الله پاک سره کې یې شریک پیدا کړو -

دغه قول رسول الله صلی الله علیه وَسَلم ابن عباسؓ رضی الله عنه ته و فرمایل: کله چې سوال کوی نو د الله نه یې او کله چې د مرستی غوښتنه کوی نو د الله څخه مرسته غواړه او وچ شوی دی قلم، یعنی فارغ شوی دی د هغه څه د لیکنی څخه چې محکینی دی راتلونکی دی، او ته و رسره څخ کیږی (یعنی کوم شی چې تاته د رسیږی هغه مقدر شوی دی) که ټول خلق تاته د نفع رسولو کوښښ وکړی تاته کټه نشی رسولی مګر هغه شی چې الله پاک ستا فائدې له پاره لیکلی وی، او که چیرته ټول خلق د دی خبری کوښښ وکړی چې تاته نقصان او زیان در و رسوی نو تاته نقصان نه شی در رسولی مګر هغه شی چې الله پاک ستا ضرر له پاره لیکلی وی -

---

(پاتی ص٧٢) او تابانډی می سپارلی دی، خدای ادتاته می سپارلی دی. د دغه حدیث له مخی دغه دول اقوال شرعاً نا روا دی ځان ساتنه و رنه ضروری ده - (ژباړن)

د غه ډول رسول کريم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:
زما د توصیف په برخه کښې د دومره افراط مه کوئ
لکه څومره چې نصرانیانو د عیسی بن مریم په برخه
کښې کړی و، بیشکه زه بنده یم ما ته د الله بنده او
د هغه رسول ووایئ. همدارنګه یې فرمایلي دي:
الله! ته زما قبر بُت و نه ګرځوې چې عبادت یې شروع شي

د غه ډول رسول الله فرمایلي دي: زما په قبر
باندې اختر (خوشالي او میله) مه جوړوئ، پر ما باندې
درود اووایئ، بیشکه ستاسې درود هر ځای کښې چې
یاستئ ما ته را رسیږي.

همدا غه ډول رسول الله صلی الله علیه وَسَلم د خپل
مرض په حالت کښې و فرمایل: په یهودو او نصاراؤ د
الله لعنت وی د دی د خپلو انبیاوو د قبرو نو ځنګه
مساجد جوړ کړی و- ده خپل امت د هغه ډول افعالو
او مراسمو د اجراکولو څخه و یرولو کوم چې دیهودانو
او نصرانیانو له خوا په دی برخه کښې منځ ته راغلی و.

اُمّ المؤمنین عائشه رضی الله عنها وایي:
که دا ویره نه وای چې خلق به بیا د رسول الله صلی
الله علیه وسلم د قبر نه مسجد جوړ کړي نو حتما به یې قبر
مکشوف یعنې ښکاره وای او کوم حائل یا پرده به یې
نه لرلی، لیکن دا بد کار دی چې قبر یې ښکاره شي او مسجد

ترینه جوړ شي.[1] «شیخ وایي» دا یو وسیم باب دی چې زښت زیات دلائل پکښې وجود لري. (۲)

(۱) لکه چې په فتح الباري کښې ذکر دی مراد په دې سره دکور څخه د باندې د فن کیدل دي.

(۳) ټول هغه احادیث چې معنایي مخکښې ذکر شوه د سند په لحاظ سره جید او کره دي.

(په روستني حدیث کښې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په یهودو او نصاراؤ باندې لعنت ویلی دی سبب یې وساله داپه ګوته کړی دی چې دوی دخپلو انبیاؤ د قبرونو څخه مساجد جوړه کړي وُ، او بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل صحابه او امتیان په دې برخه کښې د هغه ټول افعالو نه چې ویرول کوم چې هغوی د خپل ځانه ایجاد کړي وُ، بناءً اوس په دې باندې ځان پوهول په کار دي چې د (اتَّخَذُوا قُبُورَ انبیائِهِمْ مَسَاجِدَ) چې معنایي داده، دوی د خپلو انبیاؤ د قبرو نو څخه مساجد جوړ کړي وُ، څه مقصد کیدی شي؟ -

شیخ محمد ناصرالدین الباني د دغه (اتخاذ) یا مسجد جوړ ولو په باره کښې په (تحذیر الساجد من اتخاذ القبور مساجد) نومی خپل تصنیف کښې مفصل او په زړه پوری بحث کړی دی او د موضوع په اړه یې یو زیات شمیر احادیث په مختلفو روایا تو او عباراتو سره رانقل کړي دي او بیایې دغه

(اتخاذ) دعلماؤ او محدثینو د اقوالو په رنړا کښې په دری ډوله داسې معنا کړې دی:

۱ - په قبرونو باندې لمونځ کول یعنې په قبرونو باندې سجده ایښودل.

۲ - قبرونو ته سجده کول او په لمانځه او دعا کښې ورته مخامخ کیدل.

۳ - په قبرونو باندې جوماتونه (مسجد) جوړول او پکښې د لمانځه د آداء کولو قصد او اراده.

شیخ البانی داهم لیکلی دی چې امام شافعی (رح) ویلې دی چې حدیث دغو دری واړو معناګانو ته شامل دی.

د دغه رسالې د ژباړونکی په نظر چې د دغه دریواړو معناګانو حکمونه هره یوه واضحتل شی په اوسنی وختکښې د هریوې له پاره مصداق وجود لري ځکه داسې جوماتونه وجود لري چې په مقبروکښې په قبرونو باندې د پاسه آباد شوی دی، او خلک پکښې لمونځ ادا کوی.

د غه راز ډیر جوماتونه دی چې په ادیروکښې اود نوروځایونوکښې د قبرونو په منځ او دیا خوا و شا کښې جوړ شوی دی، او دغه ډول په ځنو مسجدونو کښې د بعضو پیرانو، اخوندانو او ملا امامانو مړی د ځنو خود غرضو اشخاصو له خوا د فن کیږی چې اکثره یې په لمانځه او دعا کښې د قبلې په لوری مخې ته واقع کیږی.

دارنګه په مقبرو، درګاه‌ګانو او په اصطلاح زیارتونو کښې سجده او انحناء او د قبرونو ښکلول او هم کول د قبر پرستو او زیارت پرستو له خوا یوه عادي مسئله ګرځیدلې ده. په دې هکله د زیات تفصیل له پاره د شیخ البانی کتاب (تحذیر الساجد من اتخاذ القبور مساجد) ته مراجعه وشي.

الله پاک دې مونږ ټولو مسلمانانو ته د سمې لارې هدایت او کړي، او د هر ډول شرک او ناروا اعمالو څخه مو دې په امان کښې وساتي).

(ژباړن)




## هغه اسباب چې الله پیدا کړي دي انکار تري نشي کیدای

مؤمن سره له دې چې په دې باندې علم لري چې الله پاک د هر شي پالونکی او مالک دی، خو دی نه کار سره دی د هغو اسبابو څخه چې الله تعالی پیدا کړي دي انکار نه کوي د مثال په توګه (الله ج) د نباتاتو د راټوکولو او زرغونولو له پاره لکه چې فرمایي باران یې سبب ګرځولی دی -

﴿وَمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ مَّآءٍ فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيْهَا مِنْ كُلِّ دَآبَّةٍ﴾ (۱)

---

(۱) بقره: ۱۶۴-

ترجمه: او په هغه څه کښې چې راورولې دی الله تعالی
د آسمان له طرفه له اوبو څخه نو ژوندۍ کړې یې ده په
هغو اوبو سره ځمکه پس د مړ والي د هغې نه او خپاره کړي
یې دي په دې ځمکه کښې له هر قسمه ژوندو سره یعنې خوځېد-
ونکو څخه.

دغه راز لمر او سپوږمۍ د هغه شیانو له پاره اسباب
ګرځولي دي د کومو وجود چې د دغو دواړو یعنې لمر او سپوږمۍ
پورې اړه لري.

دغه ډول یې دعا او شفاعت په هغه څه کښې چې په دعا
او سفارش سره حاصلېږي اسباب ګرځولي دي.

د مثال په توګه په مړي باندې د مسلمانانو له خوا د جنازې
د لمونځ ادا کول شول، ځکه د جنازې لمونځ د هغو اسبابو د
جملې څخه دی چې الله پاک د هغې په توسط سره پر مړي باندې
رحم کوي او په دغه مړي باندې د جنازې د لمانځه ادا کوونکو
ته ثواب ورکوي.

اما په اسبابو کښې درې ټکو ته متوجه کېدل په کار دي:
یو دا چې د مقصد د حصول له پاره په خاص ډول سره کوم
ځانګړی سبب په پام کښې و نه نیول شي بلکې د دغه سبب په
څنګ کښې د نورو اسبابو څخه هم استفاده کول ضروري دي،
او د دې سره سره د مطلوب د لاس ته راوړلو په لاره
کښې ځنې خنډات هم وي چې د هغې لرې کول هم ضرور دي

دی نوکه چیرته اسباب بشپړه نه شی او خنډان له منځه
لاړ نشی مقصد نه حاصلیږی، او الله (ج) چی پاک او منزه
دی هغه څه لره چی خوښه یی وی هغه پیدا او شته کاندی
اگرچی د خلقو خوښه نه وی، او کوم شی چی د خلقو خوښه
وی نو د هغی وجود هله ممکن گرځی چی الله پاک یی د پیدا
کیدو اراده وکړی.

دویم دا چی د یو شی په سببیت باندی عقیده ساتل بی له
دی چی په سببیت باندی علم ولری، ممنوع امر دی، پس هغه
څوک چی د یو داسی شی سببیت ثابته وی چی یا وَر باندی
علم نه لری او یا هغه د شریعت مخالف وی هغه په باطله
لاره روان دی، لکه هغه شخص چی د نذر متعلق په دی
گمان اوسی چی نذر د مصیبتو نو د مخ نیوی او د نعمتونو د
حصول په برخه کښی یو سبب دی، ځکه په صحیحینُ کښی
د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه ثابته ده چی رسول الله
صلی الله علیه وسلم د نذر د منلو څخه منع کړی ده او فرمایلی
یی دی: نذر منونکی د نذر په ادا کولو سره کوم غوره عمل
نه ترسره کوی بلکښی نذر صرف د بخیل د لاسه د مال د
خروج او وتلو یوه لاره ده.

دریم دا چی دینی اعمال کوم چی مشروع نه وی د اسبابو
د جملی څخه نه حسابیږی، ځکه چی مبنی د عباداتو توقیفی
ده، یعنی د شارع څخه د سمع او نقل پوری اړه لری پس انسان

له پاره دا جائز نه دی چې د ی د الله پاک سره شریک مقرر
کړي، او د الله تعالیٰ څخه په غیر بل چاته د امداد شه وروا
راوبیځ بَلِي او عبادت یې ور له پیل کړي، اګرچې دی په دی
ګمان اوسي چې د غیر الله بلنه د ده له پاره د خُنو
مقاصدو د لاس ته راوړلو په برخه کښې سبب جوړی
دای شي. له همدی امله هغه طریقې چې د شریعت مخالفې
او بدعت دی د الله تعالیٰ د عبادت په برخه کښې وربانده ی
دانسان له پاره عمل ترسره کول اګرچې دی پری د شریعت
ګمان هم کوی، ممنوع او ناروا دی.

دا خبره هم په پام کښې نیول په کار دی چې کله کله
دانسان سره د خُنو مقاصدو په لاس ته راوړلو کښې
هغه وخت چې دی د الله تعالیٰ سره شریک مقرر کاندی
شیطان مرسته کوی، او کله کله دانسان خُنی حاجتونه د کفر،
فسق، او عصیان په وجه سره حاصلیږی خود ده له پاره
د دغو اعمالو انجامول حرام او ناروا دی ځکه کوم فساد چې
د دغه افعالو په ارتکاب سره منځ ته راځي هغه ډیرلوی
دی په نسبت سره هغه مصلحت ته چې د دغو ناروا اعمالو په
انجامولو سره منځ ته راځي.

او دا ځکه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د بعثت مقصد
د مصالحو تحصیل او تکمیل او د مفاسدو تقلیل، او د له منځه
وړل دی پس الله پاک چې په کوم شي سره امر کړی دی

نو د هغې د قاعدې او کتنې د سولو اړخ راجع او ښايست
متصور دی او د کومرشي څخه چې يې منع کړې د که
نو په هغې کښې د فساد د منځ ته را تلو جانب راجع او زيات
متصور دی -

دا يو څو جملې دي چې زښت زيات بسط او تفصيل
لري، خو دا چې په دغو محدودو پاڼو کښې نه ځائيږي
نو په لنډ ډول سره ور باندې رڼا واچول شوه

والله اعلم

وصلی الله تعالی علی خير خلقه محمد وعلی آله واصحابه
اجمعين ط

